

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی يې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوخو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پاميريان، نورستانيان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان
دا هېواد به تل ځليږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سينه کې د آسيا به — لکه زړه وي جاويدان
نوم د حق مو دی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د څانګې د درسي کتابونو علمي او مسلکي غړي

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ علمي او مسلکي غړي

**ټولګی:** نهم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af






## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



## د مطالبو لړ لیک

**سر لیکونه** **مخونه**

# د ایمان اړین څیزونه

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ قَالَ «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ جارَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ». متفق علیه

## د راوي پېژندنه

نوم يې عبدالرحمن بن صخرالدوسي لقب يې ابوهريره او د هجرت په اووم کال مسلمان شوی دی. ډېره موده يې د پيغمبرﷺ خدمت کړی، له همدې امله يې له رسول اللهﷺ څخه ګڼ شمېر احاديث روايت کړي دي. دغه جليل القدر صحابي په تقوی او پرهيزګارۍ مشهور او د لوړ ذکاوت خاوند و او د هجرت په (۵۸) کال وفات شو.

**فعاليت**

ابوهريرة څوک دی؟ معرفي يې کړئ.

## د کلمو معنا

۱. فَلْيَقُلْ خيراً: نو نېکې خبرې دې وکړي.
۲. أَوْ لِيَصْمُتْ: يا دې چوپ اوسي.
۳. فَلْيُكْرِمْ جَارَهُ: نو د خپل ګاونډي عزت دې وکړي.
۴. فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ: نو د خپل مېلمه عزت دې وکړي.

## د حديث شريف معنا

له ابي هريرهﷺ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وفرمايل: که څوک په الله تعالی او د آخرت په ورځ ايمان لري نو د خير خبرې دې کوي او يا دې چوپ اوسي، او که څوک په الله تعالی او د آخرت په ورځ باندې ايمان لري نو د خپل ګاونډي درناوی دې وکړي، او که څوک په الله تعالی او د آخرت په ورځ ايمان لري نو د خپل ميلمه عزت او پالنه دې وکړي.

## د حديث شريف حکمت

په الله تعالی او د آخرت په ورځ باندې ايمان درلودل د زړه عمل دی، خو هغه وخت نور خلک پرې پوهېدای شي چې نښې او نښانې يې په خبرو او يا عمل کې څرګندې شي، نو په خبرو او عمل کې د ايمان نښې پدې حديث شريف کې بيان شوې دي، هغه دا چې هر وخت د خير خبرې ورڅخه اورېدل کېږي، او له خلکو سره نېکي کوونکی وي، په ځانګړې ډول له هغو خلکو سره چې له ده سره زيات کاروبار لري زيات ښه چلند وکړي، لکه: ګاونډيان، همکاران، مېلمانه او يا هغه خلک چې کور او يا د کار ځای ته يې راځي.

**فعالیت:** ایمان تعریف کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

١. **ښې خبرې کول د ایمان نښه ده:** په الله تعالی او د آخرت په ورځ باندې ایمان انسان د نېکو خبرو کولو، له ناوړه خبرو څخه ډډې کولو او په بې ځایه خبرو باندې ځان او یا نورو ته له ضرر رسولو څخه ډډې کولو ته هڅوي، پاتې دې نه وي چې خبرې کول د خبرو ټولو ډولونو لکه: ژبنۍ، قلمي، اشاري، اورېدلو او لیدلو ټولو ډولونو ته شاملېږي چې باید مؤمن انسان د دغو ټولو شیانو استعمال ته پاملرنه وکړي.

ځکه کله چې انسان خپلو خبرو ته پاملرنه ونه کړي، شونې ده چې دروغ ووایي، په چا باندې تهمت ولګوي، د چا بې عزتي وکړي، غیبت وکړي او یا د خلکو وخت په بې ځایه خبرو او بې ځایه غوښتنو ضایع کړي.

٢. **له ناوړه خبرو څخه چوپ اوسېدل غوره دي:** که یو انسان د نېکو او غوره خبرو توان ونه لري او ونه شي کولای چې په نېکو خبرو سره خلکو ته ګټه ورسوي نو پده باندې لازمه ده چې چوپ واوسي.

**فعالیت:** هغه ضررونه چې له ناوړه او بدو ویلو څخه را منځ ته کېږي، کوم دي؟

٣. **د ګاونډي عزت او درناوی کول د ایمان نښه ده:** ګاونډی چې پدې حدیث شریف کې ذکر شوی دی، ټولو هغو خلکو ته ویل کېږي چې له انسان سره د کور، کار او یا هم د ښوونې او روزنې په چاپېریال کې نږدې ژوند کوي.

ګاونډی مختلفې مرتبې او درجې لري چې عزت او درناوی کول یې د ایمان نښه ده، همدارنګه د ګاونډي اکرام او درناوی هم مختلفې مرتبې لري، خو تر ټولو کمه مرتبه یې دا ده چې هر سړی له دوی سره په ورین تندي مخامخ او راشه درشه وکړي.

**فعالیت:** کوم ځیزونه دي چې هر څوک کولای شي د ګاونډي عزت پرې وکړي؟

د مېلمه عزت او درناوی کول د ایمان بله نښه ده: مېلمه په عرف کې هغه سړي ته ویل کېږي چې د انسان کور ته په اجازه او یا د ده په دعوت سره ورشي.
خو په عامه معنا سره ټولو هغو خلکو ته ویل کېږي چې د انسان کور یا د کار ځای ته په اجازه او یا د ده په دعوت سره ورشي چې پدې صورت کې ټولو هغو خلکو ته ویل کېږي چې دعوت ورته شوی وي او یا دعوت ورته نه وي شوی، آن د دفترونو مراجعینو ته هم ویل کېږي.
نو څرنګه چې د مېلمه درجې او مرتبې متفاوتې دي همدارنګه عزت او درناوی یې هم مختلفې مرتبې لري چې تر ټولو کمه مرتبه یې له مېلمه سره په ورین تندي مخامخ کېدل دي.

### ارزونه

۱. لاندې عبارتونه تکمیل او پوره کړئ:

- ✓ من کان یؤمن بالله و الیوم الآخر فلیقل............او لـــ........
- ✓ و من کان یؤمن بالله و الیوم الآخر.................جاره.
- ✓ و من کان یؤمن بالله و الیوم الآخر.................ضیفه.

۲. هغه عبارت چې د حدیث شریف په دریو جملو کې تکرار شوی، کوم دی؟

۳. هغه عبارتونه چې د حدیث شریف په درې واړو جملو کې متفاوت دي، کوم دي؟

۴. د لوست د حدیث شریف معنا بیان کړئ.

۵. د حدیث شریف حکمت بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

۱. د پورتني حدیث شریف عبارتونه له تکمیل او پوره کولو څخه وروسته حفظ کړئ.

۲. د لاندې موضوعاتو څخه د یوې په اړه لنډه مقاله ولیکئ:

- ✓ نیکې خبرې او په فرد او ټولنه یې اثر.
- ✓ د ګاونډي عزت او درناوی کول.
- ✓ د مېلمه عزت او درناوی کول.

# اتفاق او يووالی

عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ:« مَثَلُ الْمُؤْمِنِينَ فِي تَوَادِّهِمْ، وَتَرَاحُمِهِمْ، وَتَعَاطُفِهِمْ، مَثَلُ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ، تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى».متفق عليه

## د راوي پېژندنه

نوم يې نعمان، د بشير بن ثعلبه انصاري زوی، د خزرج له قبيلې څخه دی، مدينې منورې ته د نبي كريم ﷺ له هجرت څخه وروسته په انصارو کې تر ټولو لومړی زېږېدلی دی، خپله راوي، مور او پلار يې ټول صحابه وو، دغه جليل القدر صحابي سخي، نيک خويه، شاعر، زړه ور او ښکلی نطاق و او د هجرت په ٦٥ كال وفات شو.

## د کلمو معنا

١. تَوَادِّهِمْ: د دوی تر منځ دوستي.
٢. تَرَاحُمِهِمْ: د دوی تر منځ زړه سوی.
٣. تَعَاطُفِهِمْ: د دوی تر منځ مهرباني.
٤. تَدَاعَى: يو بل رابللي.
٥. السَّهَرِ: بې خوبي.
٦. الْحُمَّى: تبه.

## د حديث شريف معنا

له حضرت نعمان بن بشير رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: مسلمانان په خپلو منځونو کې په دوستۍ، زړه سوي، او شفقت کې د يو بدن مثال لري، که د بدن يو غړی په درد شي د بدن نور غړي هم په پرېشانۍ او تبه کې له هغه سره ګډون کوي.

## د حديث شريف حکمت

اتفاق او يووالی د ټولو ملتونو د برياليتوب او کاميابۍ اصلي لامل دی، هغه ملت چې وګړي يې د بدن د غړو په څېر متحد او د خپلې ټولنې د نېکمرغۍ له پاره کار کوي، په خوښيو او ستونزو کې يو له بل سره شريک وي، په يقيني توګه هغه بريالی او نېکمرغه ملت دی.

له همدې امله نبي کریمﷺ په دغه مبارک حدیث کې مسلمانان په هر وخت او هر ډول شرائطو کې اتفاق او یووالي ته رابللي دي، تر څو مسلمانان د خپل ځان او ټولنې د نېکمرغۍ له پاره د یو بدن د غړو په څېر کار وکړي.

### فعالیت

د بدن له غړو سره د مسلمانانو په تشبیه کې غور وکړئ، او ووایئ چې مسلمانان د خپل وضعیت د ښه والي له پاره باید څه تدابیر ونیسي؟ عمده ټکي یې په فردي او یا ډله ییزه توګه بیان کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱. ټول مسلمانان د یو بدن د غړو په څېر دي.
۲. اتفاق، یووالی او له نفاق څخه ځان ساتل پر مسلمانانو باندې لازم دي.
۳. د اسلامي ټولنې ټول وګړي باید په امتیازاتو او حقوقو کې سره برابر وي او باید دا ټول د ټولنیز عدالت تر سیوري لاندې وي.
۴. همدارنګه د اسلامي ټولنې ټول وګړي په مسئوولیت، وجایبو او د ستونزو په حل کولو کې باید سره شریک وي او هر یو د خپل توان په اندازه د هغې په حل کولو کې ونډه واخلي.
۵. هېڅ یو وګړی باید امتیازات پر خپل ځان او یا څو تنو پورې ځانګړي نه کړي.
۶. هېڅ یو وګړی باید د ستونزو د حلولو مسئوولیت ته شا نه کړي.
۷. مسلمانان باید تر ټولو وختونو زیات د ستونزو او تکلیفونو په وخت کې یو بل ته نږدې شي او د ټولنې له اصلاح او ستونزو له حل څخه پرته په بل شي ځان مصروف نه کړي.
۸. د مسلمانانو اتفاق او یووالی له نورو بشري ټولنو سره د جنګ او اختلاف معنا نه لري، بلکې مسلمانان د یووالي او اتفاق په صورت کې کولای شي چې خپلې ټولنیزې، اقتصادي او سیاسي ستونزې حل او له منځه یوسي، او په نړۍ کې د یو فعال او بشریت ته د ګټه رسوونکي غړي په حیث ښکاره شي، د نورو خلکو د اوږو اقتصادي او ټولنیز پېټی نه وي، بلکې د دې مبارک حدیث (خیر الناس من ینفع الناس) په اساس ټول بشریت ته د خدمت مصدر وګرځي.

### ارزونه

۱. د لاندې حدیث شریف عبارات بشپړ کړئ:

« مَثَلُ......... فِي تَوَادِّهِمْ، وَتَرَاحُمِهِمْ، وَتَعَاطُفِهِمْ، كَمَثَلُ......... إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ،......... لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى »

۲. د حدیث شریف مفهوم واضح کړئ.

۳. لاندې کلمې معنا کړئ:

- ✓ تَوَادِّهِمْ:
- ✓ تَرَاحُمِهِمْ:
- ✓ السَّهَرِ:
- ✓ الْحُمَّى:

۴. د حدیث شریف حکمت واضح کړئ.

۵. له حدیث شریف څخه په لاس راغلې ګټې بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث شریف له مفهوم سره حفظ کړئ.

۲. د حدیث شریف د مطالبو په اړه یوه لنډه مقاله ولیکئ او یو مناسب عنوان ورته غوره کړئ.

# دین خیر غوښتنه ده

عَن تَمِیم بنِ أوس الدَّاري ﷺ أن النبيﷺ قَالَ: ((اَلدِّینُ اَلنَّصِیحَةُ، قُلنَا لِمَن ؟ قَالَ لِلّٰهِ وَلِکتَابِهِ وَلِرَسُولِهِ وَلِأَئمّةِ المُسلِمینَ وعَامّتِهم )) رواه مسلم

## د راوي پېژندنه

نوم یې تمیم، د اوس بن خارجة زوی، د هجرت په نهم کال پر اسلام مشرف شو، لومړی کس و چې نبي کریمﷺ ته یې د منبر جوړولو مشوره ورکړه او په مسجد نبوي کې یې څراغ بل کړ، ډېر تهجد به یې کول، په مدینه منوره کې اوسیده، خو د عثمانﷺ له شهادت څخه وروسته شام ته ولاړ او د هجرت په څلوېښتم کال په فلسطین کې وفات شو.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ١. اَلنَّصِیحَةُ: | اخلاص، خیر غوښتنه او نورو خلکو ته نېکه مشوره ورکول. |
| ٢. أَئمّةِ المُسلِمینَ: | د مسلمانانو پېشوایان او حاکمان. |
| ٣. عَامّتِهم: | عام مسلمانان. |

## د حدیث شریف معنا

له تمیم بن اوس الداريﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ و فرمایل: دین د خیر غوښتنه ده، مونږ وویل د چا لپاره؟ رسول اللهﷺ وفرمایل: د الله تعالی لپاره، د هغه د کتاب او رسول لپاره، د مسلمانانو د امامانو لپاره او د ټولو مسلمانانو لپاره.

## د حدیث شریف حکمت

له الله تعالی سره اخلاص، د خلکو له پاره خیر غوښتنه، د الله تعالی د خوښې د پاره حاکمانو او عامو مسلمانانو ته نېکې مشورې ورکول ډېر ارزښتناک کار دی چې د ټولنې د پرمختګ او له ډېرو ستونزو څخه د بریالیتوب لامل کېږي.
په همدې اساس نبي کریمﷺ پدې حدیث شریف کې دین له خیر غوښتنې سره یو ځای کړی او فرمایلي یې دي: دین خیر غوښتنه ده.

**فعالیت:** یوبل ته د نصیحت د نه کولو زیانونه په فردي او یا ګروپي ډول بیان کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱. انسان باید له الله تعالی سره اخلاص ولري: یعنې د الله تعالی په ذات او صفاتو ایمان ولري، له هغه سره څوک شریک نه کړي، په اوامرو یې عمل وکړي او له نواهیو څخه یې ځان وساتي.

۲. د الله تعالی له کتاب سره باید اخلاص ولرو: د الله تعالی په کتاب چې قرآنکریم دی ایمان ولرو او د هغې په لارښوونو عمل وکړو.

۳. د الله پېغمبرﷺ سره باید اخلاص ولرو: د الله تعالی پر پېغمبر چې حضرت محمدﷺ دی، باید ایمان ولرو او د هغه په لارښوونو عمل وکړو.

۴. د مسلمانانو د پېشوایانو له پاره خیر غوښتوونکي و اوسو: پداسې ډول چې له هغوی سره د کارونو په سرته رسولو کې مرسته وکړو او د نېکو مشورو، ښو نظرونو، د لارښوونې او توفیق په غوښتلو سره دوی د آخرت او دنیا ښېګڼو ته وهڅوو.

۵. د عامو مسلمانانو په حق کې د خیر غوښتل: دوی نېکو کارونو ته دعوت کړو، په دنیوي او اخروي ګټورو کارونو کې ورسره مرسته او تعاون وکړو.

### ارزونه

۱. د لاندې حدیث شریف عبارت تکمیل او پوره کړئ:

✓ الدین.........قلنا لمن؟ قال لله و لکتابه و لرسوله و............المسلمین و عامتهم.

۲. د پورتني حدیث شریف معنا واضح کړئ.

۳. د پورتني حدیث شریف حکمت واضح کړئ.

### کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث شریف حفظ کړئ.

۲. د خلکو په منځ کې د نصیحت (خیر غوښتنې) د فکر د خپرېدو د ارزښت په اړه یوه مقاله ولیکئ.

# د اړیکو پرېکول

عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ « لاَ يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلاَثِ لَيَالٍ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا وَخَيْرُهُمَا الَّذِى يَبْدَأُ بِالسَّلاَمِ ». متفق عليه.

## د راوي پېژندنه

نوم يې خالد بن يزيد انصاري (خزرجي) دی، د بنو نجار له قبيلې سره تړاو لري. د اصحابو کرامو په منځ کې په ابو ايوب انصاري مشهور و، د عقبې د دويم بيعت پر مهال يې د رسول الله ﷺ سره بيعت وکړ او له رسول الله ﷺ سره يې په ټولو غزواتو کې ګډون درلود، ابو ايوب انصاري د حضرت علي رضي الله عنه سره ناسته ولاړه درلوده او د مجلس ملګری يې و او د هجرت په پنځلسم کال د قسطنطنيې ښار ته نژدې وفات او خاورو ته وسپارل شو.

## د کلمو معنا

١. لاَ يَحِلُّ: روا نه ده.
٢. أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ: دا چې د خپل ورور سره اړيکې پرې کړي.
٣. فَوْقَ ثَلاَثِ: زيات له درې (شپو او ورځو).
٤. يَلْتَقِيَانِ: د يو بل سره مخامخ کېږي.
٥. يُعْرِضُ هَذَا: مخ اړوي دی له هغه څخه.

## د حديث شريف معنا

له ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ((هيڅ مسلمان ته روا نه ده چې د خپل مسلمان ورور سره له درې شپو او ورځو څخه زياته موده اړيکې پرېکړي چې کله سره مخامخ شي، نو يو له بل څخه مخ واړوي، خو په دوی کې غوره کس هغه دی چې په بل رومبی سلام واچوي)).

## د حديث شريف حکمت

اسلام د يووالي، ټولنيزو اړيکو د ټينګښت، اجتماعي ژوند، بسپنې، سربښندنې او ورورګلوی دين دی، داسې ستونزه نشته چې د اسلام په مقدس او سپېڅلي دين کې د هغې لپاره حل نه وي، د يو بل څخه په مخ اړولو او د اړيکو په پرې کولو او يو بل ته د سلام په نه اچولو سره

ستونزې نه هوارېږي او کله داسې هم کېږي چې دا کار د ډېرو نورو ستونزو د زیاتېدو لامل وګرځي، نو په دې مبارک حدیث کې رسول الله ﷺ د مسلمانانو ترمنځ د اړیکو د پرېکولو څخه سخت ممانعت کړی دی او له درې ورځو څخه زیات یې پر هغې ټینګار او همیشه والی له شریعت څخه سرغړونه بللې ده.

## د حدیث شریف ګټې

۱. **له نورو سره د اړیکو د پرېکولو حرمت:** د هیڅ مسلمان لپاره جایز نه ده چې د شخصي او دنیوي ګټو په خاطر له خپل مسلمان ورور سره اړیکې پرې‌کړي، ځکه دغه کار د تکبر او غرور نښه ده او که چېرې دغه کار ته ادامه ورکړل شي، نو په دښمنۍ او نفرت بدلیږي او هغه کسان چې په یو ځای کې سره ژوند تېروي، له یو بل څخه لرې کوي او په زړونو کې یې کینه راپاروي.

۲. **لږ تر لږه درې ورځو کې د اړیکو راژوندي کول:** کله چې کوم سړی له خپل مسلمان ورور څخه خفه شي، نو لازمه ده چې د درې ورځو په ترڅ کې دې سوچ او فکر وکړي او خپلو خطاګانو او تېروتنو ته دې متوجه شي، د پوهې او علم خاوندانو سره دې مشوره وکړي او خپلې تېروتنې دې هغوی ته څرګندې کړي او له هغوی څخه دې د ستونزو د حل غوښتنه وکړي، که چېرې مصلحینو دا درک کړه چې ملامتي په مقابل لوري کې ده بیا دې هم له ده څخه غوښتنه وکړي تر څو له مقابل لوري سره اړیکه ونیسي او د دوی ترمنځ دې جوړ جاړی وشي.

۳. **هر څوک چې په پخلاینې پیل وکړي هغه غوره دی:** ډېر خلک داسې فکر کوي چې که چېرې دښمنۍ ته دوام ورکړي او په مقابل لوري شرطونه ومني، نو دی غیرتمند بلل کېږي، خو رسول الله ﷺ غوره او غیرتمند هغه څوک بللی دی چې په پخلاینې او سلام اچونه کې پر بل لومړیتوب وکړي.

۴. **پر مسلمانانو لازمه ده چې سوله رامنځته کړي:** کله داسې کېږي چې ښکېلې خواوې دواړه د غچ او بدلې اخیستلو په قهر او غوسه کې راګیرې وي او هره شیبه مقابل لوري ته د سختو مجازاتو د ورکولو پلانونه جوړوي او لازم تدبیرونه نیسي او د اسلام د سپیڅلي دین له لارښوونو او ارشاداتو څخه بې خبره وي او یا هم هغو لارښوونو ته کوم ارزښت نه ورکوي، نو په داسې حال کې پرمسلمانانو فرض ده، ترڅو د خپلې وسعې او

توان په اندازه د ښکېلو خواوو تر منځ په پخلاینه کې برخه واخلي او په دې لار کې هـــر ډول سستي او تقصیر د لویو ګناهونو د ارتکاب سبب ګرځي، څکه چې الله تعالی فرمایي: ژباړه: ((که د مسلمانانو دوه ډلې یو له بل سره په جګړه کې ښکېلې وي، نو ترمنځ یـــې سوله وکړئ او سره پخلا یې کړئ)).[۱]

### فعالیت

زده کوونکي دې د اړیکو د پرېکولو په اړه په ځانګړې او یا هم په ګروپي بڼه څرګندونې وکړي.

### ارزونه

۱. پورتنی حدیث معنا کړئ.
۲. د لاندې حدیث شریف عبارت تکمیل کړئ: لایحل لمسلم........... اخاه فوق ثلاث لیال، یلتقیان فیعرض هذا و یعرض هذا و............ الذی یبدأ بالسلام.
۳. د حدیث شریف ګټې په لنډ ډول بیان کړئ.
۴. د حدیث حکمت ووایاست.

### کورنۍ دنده

۱. د حدیث دا عبارت یاد کړئ (لایحل لمسلم ان یهجر اخاه فوق ثلاث لیال).
۲. د اړیکو د پرېکولو د اضرارو په هکله یوه لنډه مقاله ولیکئ.

---

۱ - ((وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا)) د الحجرات سورت، ۹ آیت.

# دوه مخي

عن أبی هریرةرضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ «تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ یومَ القِیامَهِ ذَاالوَجهَینِ الَّذِی یأتی هَؤُلَاءِ بِوَجهٍ وَ هَؤُلَاءِ بِوَجهٍ» متفق علیه

## د راوي پېژندنه

نوموړی عالیقدر راوي په لومړني لوست کې معرفي شوی دی.

## د کلمو معنا

۱. تَجِدُونَ: تاسو مومئ.
۲. ذَاالوَجهَینِ: دوه مخي.
۳. یأتي: راځي
۴. هَؤُلَاءِ: دوی
۵. وَجهٍ: مخ

## د حدیث شریف معنا

له ابو هریرهرضي الله عنه څخه روایت دی چې پېغمبر ﷺ وفرمایل:((تاسو به د قیامت په ورځ د ټولو خلکو بد کس هغه څوک وموئ چې د خلکو ترمنځ دوه مخي کوي، یعنې ځینو ته په یو مخ او ځینې نورو ته په بل مخ څرګندېږي چې دې خلکو ته یو څه او هغو نورو ته بل څه وایي، (تر څو یې تر منځ نیکې او دوستانه اړیکې خرابې کړي).

## د حدیث شریف حکمت

دوه مخیتوب د انسان اخلاقي او تربیوي نیمګړتیا څرګندوي، د افرادو او ډلو ترمنځ اړیکې زیانمنې کوي او د هغوی ترمنځ د کرکې او دښمنیو لامل ګرځي چې وروسته بیا په جګړو او وینو تویولو بدلیږي، دغه ډول کار یو ډول نفاق او غولونه ده، بناءً پیغمبر ﷺ مسلمانان ور څخه په کلکه منع کړی ده.

**فعالیت:** د دوه مخی ضررونه په ځانګړي او یا هم په ګروپي بڼه بیان کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱. **د قیامت په ورځ به تر ټولو بد کس دوه مخی کس وي:** دوه مخي یوه ډېره بده کړنه ده چې د الله ﷻ په نزد ډېره لویه ګناه ده، خو ځینې خلک دوه مخي یو لوی هنر ګڼي او په هغې ویاړي، خو دوی په حقیقت کې په یوې لویې ګناه اخته کېږي، نو په دې حدیث شریف کې دوه مخی انسان ډېر بد انسان ګڼل شوی دی.

۲. **دوه مخي او دوه رنګي یو ډول نفاق او دوکه ده:** دا ځکه دوه مخي انسان د دې پر ځای چې د دوو خفه مسلمانانو او یا ډلو ترمنځ د روغې جوړې هڅه وکړي، دا کوښښ کوي، ترڅو د هغوی ترمنځ تاوتریخوالی او نفرت زیات کړي، دوه مخی انسان کله چې کومې ډلې ته ورشي د هغې تایید کوي او هغه سل پر سلو په سمه او مقابل لوری یې سل پر سلو په ناروا بولي، ترڅو په دې توګه خپله ګټه په دواړو خواوو کې خوندي وساتي او له بلې خوا دواړه ډلې سره نورې هم په دښمنۍ کې راښکېل کړي.

۳. **مسلمان باید د دې جرئت ولري، ترڅو ګنهګار ته د هغه ګناه ور په ګوته کړي:** مسلمان باید دواړو ناراضو ډلو ته د هغوی خطاګانې ور په ګوته کړي، البته د حق دا وینا باید په ډېر حکمت او نرمۍ سره دواړو خواوو ته وویل شي او هغوی باید په دې پوه شي چې د دوی حقیقي او واقعي دوست هغه څوک دی چې دوی ته د دوی خطاګانې څرګندوي او نېکې مشورې ورکوي.

۴. **د مداحو او غوړه مالو خلکو څخه ځان ژغورل:** ځکه ډېر ځل داسې هم کېدای شي چې مداحان او غوړه مالان د خپلو ګټو په خاطر له رېښتیا ویلو ډډه وکړي، خصوصاً هغه وخت چې د حق وینا د دوی د دوستانو د خفګان لامل ګرځي.

## ارزونه

۱. د لاندې حدیث عبارت تکمیل کړئ:

............ شَرَّ النَّاسِ یومَ القِیامَهِ.............. یأتِی هَؤُلَاءِ.......... وَ هَؤُلَاءِ بِوَجهٍ.

۲. د حدیث عبارت ولولئ او مفهوم یې څرګند کړئ.

۳. د حدیث حکمت بیان کړئ.

۴. د حدیث ګټې څرګندې کړئ.

## کورنۍ دنده

۱. لاندې عبارتونه له معنا سره په یادو زده کړئ:

« تَجِدُونَ شَرَّ النَّاسِ یومَ القِیامَهِ ذَاالوَجهَینِ الَّذِی یأتِی هَؤُلَاءِ بِوَجهٍ وَ هَؤُلَاءِ بِوَجهٍ»

۲. د دوه مخي تر عنوان لاندې لنډه مقاله ولیکئ.

# تقوا او پرهیزګاري

عن معاذ بن جبل رضی الله تعالی عنهما عن رسول الله ﷺ قال: ((اِتَّقِ اللهَ حَيثُمَا كُنتَ، وَ أَتبِعِ السَّيِّئةَ الحَسَنَةَ تَمحُهَا)) رواه الترمذي

## د راوي پېژندنه

معاذ بن جبل، د انصارو د خزرج له قبيلې څخه و، په ځوانۍ کې په اسلام مشرف شـــوی و او له پيغمبرﷺ سره د بيعت په مهال په عقبې کې هم موجود و، د حفاظو، فقيهو او مجتهـــدينو صحابوو څخه ګڼل کېږي، په ټولو غزاګانو کې يې ګډون کړی دی، پيغمبرﷺ يمن ته د قاضي په حيث ولېږه، او د هجرت په اتلسم کال په اردن کې وفات شو.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱. اتَّقِ اللهَ: | له الله ﷻ څخه ووېرېږه. |
| ۲. حَيثُمَا كُنتَ: | په هر ځای او هر حالت کې چې يې. |
| ۳. أَتبِعِ السَّيِّئةَ الحَسَنَةَ: | د بدۍ پسې نيکي وکړه. |
| ۴. تَمحُهَا: | پاکوي يې (نيکې بدي پاکوي او له مينځه يې وړي). |

## د حديث شريف معنا

له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چې: پيغمبرﷺ فرمايلي دي: په هر ځـــای او هرحالت کې چې وی له الله ﷻ څخه ووېرېږه او که چېرې درڅخه کومه ګناه صادره شوه، نو حتماً ورپسې نيک کار وکړه، ځکه چې نيکي بدي له مينځه وړي.

## د حديث شريف حکمت

انسان په هغه وخت کې د ګناه مرتکب کېږي کله چې الله ﷻ هېر کړي، غصه او عذاب يې له يامه وغورځوي، او يا دا چې ګناه نه پيژني، نو کله چې انسان د الله تعالی په يادولو او د هغه په عبادت ځان عادت کړي، او له هغه څخه دوامداره وېره يې په سترګو کې وي او په دې پـــوه شي کوم کار چې کوي ګناه ده، په دې صورت کې به هيڅکله انسان د ګناه مرتکب نه شي.
په دې حديث کې پيغمبرﷺ د انسانانو پام دې ته را اړوي تر څو له الله ﷻ څخه ووېريـــږي، ځکه چې له الله ﷻ څخه وېره د فرد او ټولنې په اصلاح کې رغنده رول لري.

**فعالیت:** د دوو کسانو کړنې چې یو یې له الله ﷻ څخه وېرېږي او بل نه وېرېږي په ډله ییزه توګه مقایسه کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱. **پرهېزګاري:** له الله ﷻ څخه په هر ځای کې وېرېدل، دا احساس د انسان وجدان ویښ ساتي او په وجود کې یې د یو داخلي څارونکي په حیث دنده تر سره کوي. له خیانت، د نورو پر حقوقو له تېري کولو او بل هر بد عمل څخه یې ژغوري.

۲. **له بد عمل څخه وروسته د نیک عمل ترسره کول:** انسان باید د الله ﷻ له رحمت څخه ناهیلی نه شي، کله چې ورڅخه د بېلابېلو لاملونو په وجه کومه ګناه صادره شي، نو له ګناه څخه دې توبه وباسي او نیک کار دې وکړي، ځکه الله ﷻ د خپلې مهربانۍ له مخې د نیک کار په سرته رسولو سره ګناه له مینځه وړي.

خو که چېرې انسان د نورو په حقوقو تېری کړی وي، لازمه ده چې هر چا ته خپل حق ورکړي، او توبه وباسي، تر څو الله ﷻ ورته بخښنه وکړي.

### ارزونه

۱. لاندې نیمګړې جملې پوره کړئ:

اِتَّقِ اللّٰهَ حَیثُمَا................ وَ أَتبِعِ.................... الحَسَنَةَ......................

۲. د لوست د حدیث مفهوم ذکر کړئ.

۳. د لاندې کلماتو معنا ووایاست.

اِتَّقِ اللّٰهَ   حَیثُمَا کُنتَ   السَّیِّئَةَ   تَمحُهَا

۴. هغه ګټې چې د لوست حدیث ورته لارښوونه کوي، ذکر کړئ.

### کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث حفظ کړئ.

۲. د حدیث حکمت په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## تواضع (عاجزي كول)

عن عمر رضى الله عنه قال: إِنّي سَمِعتُ رَسُولَ الله صلى الله عليه و سلم يَقُولُ: «مَن تَوَاضَعَ لِلّهِ رَفَعَهُ اللّهُ» رواه البيهقي في شعب الإيمان.

### د راوي پېژندنه

دغه ستر صحابي، امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضـــي الله عنـــه د خطـــاب ځـــوی او د مسلمانانو دويم خليفه و، د نوموړي په اسلام راوړلو سره مسلمانان په مکه مکرمه کې خورا قوي شول، په ټولو غزاګانو کې يې ګډون درلوده، د هجرت په ديارلسم کـال د مـــسلمانانو خليفه وټاکل شو، د هجري سنې بنسټ يې کېښود او د خلافت په دوران کې يې د عراق شام او مصر اوسيدونکي په اسلام مشرف شول، د عدالت په پلي کولو کې يې شهرت درلـــوده، نوموړی د هجرت په درويشتم کال د دري شپيتو کالو په عمر په مدينه منـــوره کـــې د يـــو مجوسي غلام له خوا چې ابولؤلؤ نومېده په شهادت ورسېده او د پيغمبر ﷺ د قبر تر څنـــګ د ابوبکر الصديق رضي الله عنه په خوا کې دفن کړای شو.

### د کلمو معنا

۱. مَن تَوَاضَعَ لِلّهِ: چا چې د الله ﷻ لپاره عاجزي وکړه.
۲. رَفَعَهُ اللّهُ: الله ﷻ به يې مقام او منزلت اوچت کړي.

### د حديث شريف معنا

له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چې ويلي يې دي: له پيغمبـــر ﷺ څخـــه مـــې واوريدل چې ويل يې: ((چا چې د الله تعالی د رضا لاس ته راوړلو په مقصد عاجزي وکړه، نو الله ﷻ به يې مقام او درجې اوچتې کړي)).

### د حديث شريف حکمت

لويي او تکبر انسان د نورو په وړاندې خورا وړوکی کوي، خو د دې پر خلاف عاجزي کول انسان د نورو په زړونو کې لويوي او خلک ورته په درنه سترګه ګوري، متواضـــع انـــسان د هميش لپاره کوښښ کوي چې خپلې ټولنې ته خدمت وکړي او نه غواړي چې څـــوک يـــې وپيژني، نه غواړي چې د حقوقو او امتيازاتو په حاصلولو په نورو برتري ولري، د خـــدای ﷻ د رضا د حاصلولو لپاره د ټولنې تر ټولو وګړو ځان کم بولي، شپه او ورځ پدې فکر کـــې وي

چې څرنګه د خلکو خدمت وکړي، په دې حدیث کې پیغمبرﷺ د پورته صــفاتو لرونکــو اشخاصو  سره وعده کوي چې: الله ﷻ به دوی ته د دوی بدله ورکړي، مرتبې به یې اوچتې او عزت به یې زیات کړي.

**فعالیت:** په ډله ییزه توګه د تواضع ( عاجزۍ ) ګټې او د تکبر( لویۍ) تاوانونه ذکر کړئ.

## د حدیث شریف ګټې

١. عاجزي باید د الله ﷻ لپاره وي: انسان باید په هیڅ صورت کې ځان په نورو پورته ونه ګڼي او د کبر ( لویۍ ) او د نورو له سپک ګڼلو څخه ځان وساتي او کوښښ دې وکړي چې کومې نیکۍ یې د خلکو سره کړي یادونه یې خلکو ته ونه کړي، خپل نیک کارونــه الله ﷻ ته وسپاري، په یقیني توګه چې الله جلاله به یې بدله په دواړو جهانو کې ورکړي.

٢. الله ﷻ د متواضع انسان مرتبه اوچتوي: کله چې انسان د الله ﷻ لپاره تواضع وکــړي، نو عادل ذات خپل بنده هیڅکله ذلت ته نه پریږدي، بلکې الله ﷻ هغه ته عزت ورکوي او مرتبه یې لوړوي، هغه ته د خپلو نیکانو بندګانو په زړونو کې ځای پیدا کوي او د الله تعالی سره یې هم مرتبه اوچتیږي.

### ارزونه

١. لاندې نیمګړې عبارتونه پوره کړئ:

من..................لله رفعه الله.

٢. د لوست حدیث معنا کړئ.

٣. د لوست له حدیث څخه چې کومې ګټې په لاس راځي، بیان یې کړئ.

٤. د حدیث حکمت بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

١. د لوست حدیث د معنا سره حفظ کړئ.

٢. د لوست حدیث د خپلې کورنۍ غړو ته ووایاست.

# کفالت

## د کفالت تعریف:

کفالت په لغت کې: یو ځای کېدو ته وایي.

او د فقهاوو په اصطلاح کې: په یو چا د لازم (ثابت) مال او یا د هغه د ځان ضمانت کول په داسې توگه چې غوښتونکی یې د اصیل او کفیل دواړو څخه غوښتلای شي، کفالت بلل کېږي.

لنډه دا چې پور د کفیل په غاړه نه ثابتېږي او د اصیل له غاړې څخه نه ساقطېږي.

لکه زید احمد ته پور ورکول او یا ورسره څه شی امانت ږدي، خو زید په احمد اعتبار نه لري، محمود زید ته وایي: زه د احمد ضامن یم، که چېرې له هغه څخه ورک شي، زه یې حاضروم، زما په اعتماد له ده سره معامله وکړه، دا معامله کفالت بلل کېږي چې پدې اساس په کفالـــت کې پور د کفیل په غاړه ثابت نشو او همدارنگه د مدیون له ذمې څخه ساقط نشو.

## د کفالت د روا والي دلیل

د ضمانت روا والی په قرآن کریم، احادیثو او اجماع باندې ثابت دی.

## لومړی: قرآن کریم

الله تعالی فرمایي: (وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ) (سورۀ یوسف، ۷۲ آیت)

ژباړه: او هغه چا ته به د یو اوښ بار په جایزه کې ورکول کېږي چې (د یوسف علیه السلام) ورکه شوې پیمانه راوړي او زه یې ضامن یم.

په دې آیت کریمه کې (زَعِیمٌ) د کفیل په معنا دی.

**دویم: سنت**

نبي اکرمﷺ فرمایي: « الزَّعِيمُ غَارِمٌ »[1]

ژباړه: ضمانت کوونکی به تاوان گالي.

---

([1]) ترمذي، ۲/ ۲۹۵

### دريم: اجماع

ټولو مسلمانانو د کفالت په روا والي باندې له دې امله اجماع کړې ده چې خلک ورته اړتيا لري.

**فعاليت**: زده کوونکي دې له خپل چاپېريال څخه داسې يو مثال راوړي چې د چا د مال او يا ځان ضمانت يې کړی وي.

### د ضمانت د روا والي حکمت

د حقوقو د ساتنې، ترمنځ مرسته، پورونو او داسې نورو مالي معاملاتو کې آسانتيا او د دې لپاره چې د حق خاوند په خپل پور او چاته د څه په ورکولوکې ډاډمن اوسي او همدارنګه د خلکو څخه ستونزې دفع او له منځه ولاړې شي تر څو په خپل منځ کې په ډاډه زړه يو د بل سره معاملې وکړي، دا هغه ټول مطالب دي چې د ضمانت د روا والي د حکمت له جملې څخه شمېرل کېږي.

### د کفالې رکن

د کفالې رکن ايجاب او قبول دی. (۱)

البته ايجاب د کفيل له لوري او قبول د پور د خاوند له لوري.

### د کفالت ډولونه

کفالت په دوه ډوله دی:

۱. د يو چا د ځان ضمانت کول چې دې ته کفاله بالنفس وايي.

۲. د يو چا د مال ضمانت کول چې کفالت بالمال بلل کېږي.

### د کفالت اړوند ځينې اصطلاحات

کفيل: هغه څوک دی چې د بل چا د مال او يا ځان ضامن کېږي.

**مکفول عنه**: اصلي پوروړی چې د اصيل په نامه هم يادېږي.

**مکفول له**: د حق خاوند.

**د کفالې محل**: د کفالې محل به يا نفس وي او يا مال.

---

(۱) فتح القدير/۵/ ۳۹۰– الدر المختار ۴/ ۲۶۰

## د کفالې شرطونه

کفالت ځانګړي شرطونه لري چې صيغې، کفيل، اصيل، مکفول له او مکفول به پورې اړه لري او په لاندې ډول بيانېږي:

## د صيغې شرطونه

۱. کفالت بايد په داسې صيغه يا لفظ وي چې په التزام دلالت کوي، مثلاً ووايي:
زه ستا د هغه پور ضامن يم چې فلاني کس درڅخه اخيستی دی.
او يا: زه د فلاني شخص ضامن يم.
۲. د کفالت لفظ بايد په غير متعارف شرط پورې تړلی نه وي، مثلاً د چا په راتګ پورې يې وتړي.
۳. د کفالت لفظ بايد وخت پورې ونه تړل شي، دا که د مال کفالت وي او د يانفس، ځکه چې د کفالت څخه مقصد ورکړه او يا حاضرول دي، کله چې وخت پکې رامنځ ته شي بيا دا مقصد نه ترسره کېږي.

## د کفيل شرطونه

۱. کفيل بايد د تبرع (ورکړې او بخښنلو) اهليت ولري، يعنې عاقل او بالغ وي، د لېوني او ماشوم کفالت صحيح نه دی.
۲. کفيل به آزاد شخص وي نو د غلام کفالت صحيح نه دی، ځکه چې دا يو خدايي کار دی، حال دا چې مريي ددې اهل نه دی.

## د اصيل يا مديون شرطونه

۱. اصيل بايد د مکفول په تسليمولو قادر وي، که پخپله وي او يا د کوم نائب په واسطه.
۲. اصيل بايد کفيل ته معلوم وي.

## د مکفول له شرطونه

۱. مکفول له (د قرض خاوند) بايد معلوم وي.
۲. مکفول له بايد عاقل وي.
۳. مکفول له به د عقد په مجلس کې حاضر وي.[1]

---

([1]) فتح القدير، ج ۵، ص ۳۹۰، بدائع الصنايع ۶/ ۲

### د مکفول به شرطونه

۱. د مکفول به یا ضمانت شوي شي تاوان به اصیل (مدیون) ګالي.

۲. مکفول به باید له هغه شیانو څخه وي چې ورکړه یې د کفیل له لوري امکان ولري، څو عقد ګټور واقع شي.

۳. د ضمانت شوي مال پور به لازم او صحیح وي.

**فعالیت**: زده کوونکي دې په خپل منځ کې کفیل، مکفول به، مکفول له او مکفول عنه په داسې مثالونو روښانه کړي چې یو یو کس په دې نومونو ونوموي.

### د کفالې احکام

۱. داین به له کفیل څخه د هغه څه مطالبه کوي چې په اصیل باندې یې لري.

۲. کفیل به له اصیل څخه هغه څه غواړي چې د څه شي ضمانت یې کړی دی.

### ارزونه

لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

کفالت لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

دکفالې رکن ووایاست.

کفالت په څو ډوله دی؟ بیان یې کړئ.

دکفالې اړوند اصطلاحات تعریف کړئ.

لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. هغه کس چې له هغه څخه د مال ورکولو او یا د شخص حاضرولو غوښتنه کېږي، د.............. په نوم یادېږي.

۲. مکفول عنه ته............. هم ویل کېږي.

### کورنۍ دنده

د خپل ټولګي د ملګرو په نومونو اخیستو سره د کفالت بالمال او کفالت بالنفس صورتونه ولیکئ او هر کس ته د کفالت په اصطلاح کې نوم ورکړئ.

# د کفالې پای

په تېر درس کې مو ولوستل چې کفالت په دوه ډوله دی، یو ته کفالت بالمال او بل ته کفالت بالنفس وايي، پدې لوست کې غواړو چې هغه کارونه وپېژنو چې کفاله پرې پای مومي.

## (۱) کفالت بالمال په دوو لارو سرته رسېږي

۱. غوښتونکي ته د مال په ورکولو او یا هغه څه کول چې د ورکړې په معنا وي، که دا ورکړه د کفیل لخوا وي او که د پوروړي لخوا.

۲. ابراء او یا صلح کول، کله چې غوښتونکی پوروړي یا کفیل ته ابراء وکړي او یا ورسره په یوه اندازه مال روغه وکړي، کفالت پای ته رسېږي.

## (۲) کفالت بالنفس په لاندې شیانو سره پای مومي

۱. په هغه ځای کې غوښتونکي د سړی سپارل چې د قاضي مجلس ته یې حاضرولی شي.

۲. ابراء: کله چې د حق خاوند کفیل ته ابراء وکړي، نو کفالت بالنفس پای ته رسېږي.

۳. کله چې په خپله مکفول عنه مړ شي، کفالت بالنفس پای ته رسېږي.

**فعالیت:** څو تنه زده کوونکي دې په انفرادي توګه د کفالې د یو یو شرط د حکمت په اړه خپلو ملګـــرو ته معلومات ورکړي.

## په اصیل باندې د کفیل د رجوع شرطونه

۱. کفالت باید د مکفول عنه په اجازه شوی وي، که داسې نه وي، بیا د کفیل ورکړی شی له پوروړي څخه نه شي غوښتلای، ځکه چې په دې صورت کې د کفیل ورکـــړه خیـــرات شمېرل کېږي.

۲. کفالت باید په صحیحې اجازې سره ترسره شوې وي، نو د هغه ماشوم اجازه د اعتبار وړ نه ده چې په ده باندې بندیزونه اېښودل شوې وي.

۳. د ضمانت نسبت به اصیل ته کېږي، لکه چې کفیل ته ووایي: زما لخوا ضامن شه تر څـــو د قرض ورکولو معنا پکې رښتینې شي، نو کله چې مدیون د ضمانت نسبت ځان ته ونـــه کړي، بیا د کفیل او اصیل ترمنځ هېڅ علاقه نه پاتې کېږي.

مسئله

- که چېرې دوه تنه د يو سړي د زرو افغانيو ضمانت وکړي، په داسې حال کــې چــې دوی دواړه يو د بل تضمين ونه کړي، بيا له دواړو ضامنانو څخه يو تن خپله حصه پور ادا کړي، نو هغه څه چې ده ورکړي دي، له خپل ملګري څخه هېڅ غوښتنه نه شي کولای، ځکه چې ده هغه له خپل لوري څخه ورکړي، نه د ملګري له لوري څخه، خو د اصيل(مديون) څخه يې غوښتلای شي، ځکه چې د همده په امر ضامن شوی دی.
- وړاندې له دې چې ضامن منل شوی مال نه وي ورکړی له مديون څخه يې نه شي غوښتلی، نو هر کله چې کفيل منل شوی شی داين ته ورکړ بيا يې له پوروړي څخه غوښتلای شي.

## په اوسني عصر کې په کفالت باندې د اجورې اخيستلو حکم

دا غوره ده چې د کفالت عقد پرته له کومې اجورې ترسره شي، بيا هم که چېرې پوروړي څه اندازه مال د خيرات، ډالۍ او بخشش په نامه خپل کفيل ته ورکړي، ګناه نه لري، ځکه چې دا د ده د هغې ښېګڼې په لړ کې ده چې ضامن له ده سره کړې ده.

- که چېرې کفيل اجوره شرط کړي څه حکم لري؟

ځواب: د ضرورت او ټولنيز حاجت لپاره په کفالت باندې اجوره اخيــستل روا ده، د دې لپــاره چې د خلکو مصالحو يا ښېګڼو کې ځنډ رانه شي، لکه بهر ته د مزدورۍ يا درس لپاره تګ.

## د اوسني عصر د مهمو تجارتي کفالتونو ډولونه

### ۱. د درک ضامن کېدل

هغه دا چې پلورونکي ته د پيسو ضمانت ورکړي او مشتري يا اخيستونکي تــه د مبيعــې تضمين ورکړي.

### ۲. د بازار ضمانت کېدل

دا چې د بازار د تاجر د ټولو پورونو ضمانت وکړي، يعنې تاجر چې څه شيان په بازار کــې رانيسي، د هغو د پيسو تضمين په غاړه واخلي.

### ۳. د وزن، ګز او پيمانې ضامن کېدل

دا چې دا تاجر يا دوکاندار چې د وزن، ګز او پيمانې په هکله څــه وايــي، صــحيح دي، د غلطۍ او درغلۍ يې زه ضامن يم.

### ارزونه

أ. لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. په کومو حالاتو کې کفالت بالمال او کفالت بالنفس پای مومي؟

۲. ایا کفیل د اصیل څخه غوښتنه کولای شي؟ د دې مسئلې شرطونه په لنډه ډول بیان کړئ.

۳. د اوسنۍ زمانې د تجارت اړوند د کفالت مهم ډولونه وواياست.

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. کفالت باید د.................... په امر او اجازې سرته ورسېږي.

۲. د بازار ضمانت او تعهد عبارت دی له.........................................

### کورنۍ دنده

دلوست مهم ټکي په خپله ژبه په پنځو کرښو کې ولیکئ

# حواله

زبير په بلال پنځوس زره افغانۍ پور لري، بلال احمد ته وايي: پنځوس زره افغانۍ زبير ته زما له درکه ورکړه، احمد وايي سمه ده. دې کار ته د فقهې په اصطلاح کې حواله ويل کېږي.
دا عمل په څلورو عناصرو مشتمل دی چې د فقهې په علم کې هر يو خپل نوم لري.
بلال ته محيل، زبير ته محال، احمد ته محال عليه او پور ته محال به وايي.

## د حوالې تعريف

حواله په لغت کې: نقلولو ته وايي.
او د فقهاوو په اصطلاح کې: د مديون له غاړې څخه د ذمې اخيستونکي غاړې ته د غوښتنې نقلولو ته حواله وايي.
دا د کفالې پر خلاف ده، ځکه په کفاله کې غوښتونکی په اصيل او کفيل دواړو حق لري او په هر يو چې برلاسی شي، خپل حق ورڅخه غوښتلی شي، مگر په حواله کې د محيل له غـــاړې څخه حق ساقطيږي. [1]

## د حوالې د روا والي دليل

د پور حواله د نبي اکرمﷺ په احاديثو او اجماع باندې روا شوې ده.

۱. رسول اللهﷺ فرمايي: (مَطْلُ الْغَنِيّ ظُلْمٌ وَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيءٍ فَلْيَتْبَعْ) [2]

ژباړه: غني چې د پور ورکولو توان ولري، د پور ځنډول يې ظلم دی، هر کله چې څوک غني ته حواله کړی شو، حواله دې ومني.

۲. مسلمانانو د حوالې په جواز باندې اجماع کړې ده. [3]

---

([1]) فتح القدير د عنايي سره، ۵/ ۲۴۳، الدر المختار: ۴/ ۳۰۰

([2]) نصب الراية، ۴/ ۵۹

([3]) فتح القدير، ۵/ ۴۴۴

## د حوالې حکم

حواله په پورونو کې روا ده، خو په اعیانو کې جواز نه لري، ځکه چې دا د نقل او اړولو په معنا ده، حال دا چې دا کارونه په پورونو کې راتلای شي، نه په اعیانو کې، ځکه اعیان مشخص وي او کوم عین چې له یوه سره وي، هغه له بل سره نه وي، نو څوک نه شي کولی چې هغه عین حقدار ته ورکړي چې په بل لازم دی.

**فعالیت:** څو تنه زده کوونکي دې د حوالې مختلف موارد تمثیل کړي.

## د حوالې اړوند ځینې اصطلاحات:

۱. **مُحِیل:** هغه کس ته ویل کېږي چې پور وربانديې وي.
۲. **مُحَال:** هغه کس ته وایي چې د حق خاوند وي.
۳. **مُحَال عَلَیهِ:** هغه شخص دی چې د بل د پور ورکړه یې په ځان منلې وي.
۴. **مُحَال بِهِ:** هغه پور ته ویل کېږي چې بل کس ته حواله شوی وي.

## د حوالې رکن

په ځانګړو الفاظو سره ایجاب او قبول د حوالې رکن دی. [1] ایجاب د حواله کوونکي له خوا او قبول د حواله اخیستونکي او حواله شوي له خوا.

## د حوالې شرطونه

**الف:** د صیغې (ایجاب او قبول) شرطونه:

۱. ایجاب او قبول باید په یو مجلس کې وي.
۲. عقد باید قطعي وي، هېڅ ډول خیار به پکې شرط شوی نه وي.

**ب:** د محیل یا حواله کوونکي شرطونه:

۱. حواله کوونکی باید عاقل او بالغ وي.
۲. حواله کوونکی به په خوښۍ سره حواله ترسره کوي، په زور سره حواله صحیح نه ده.

**ج:** د محال یا د حق خاوند شرطونه:

۱. محال یا د حق خاوند به عاقل او بالغ وي.

---

[1] الدر المختار، ۴/ ۳۰۱ او وروسته پاڼه

۲. محال علیه یا حواله شوی شخص به په حواله خوښ او راضي وي.

۳. حواله شوی شخص باید حواله د عقد په مجلس کې ومني.

د: د محال علیه شرطونه

۱. د ده شرطونه کټ مټ د محال یا د حق د خاوند شرطونه دي.

هـ: د محال به شرط

۱. محال به یا حواله شوی مال باید پور وي، که چېرې پور نه وي، عین وي، په دې صورت کې تسلیمول د عین حواله نه، بلکې وکالت بلل کېږي. [۱]

## د حوالې احکام

۱. د حواله کوونکي خلاصېدل: کله چې حواله د مقابل لوري په منلو سره پای ته ورسېده، حواله کوونکي براءت لاس ته راووړ او له پور څخه خلاص شو.

۲. د حق د خاوند د غوښتنې ثابتېدل، په هغه چا باندې چې دی ورته حواله شوی.

ارزونه

أ. لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. حواله لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

۲. حواله په کومو شیانو کې روا ده؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.

۳. د حوالې رکن ووایاست.

۴. د حوالې کوونکي اړوند شرطونه بیان کړئ.

۵. د حوالې د اخیستوونکي اړوند شرطونه ووایاست.

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. حواله په.......................... روا ده، نه په اجناسو کې.

۲. د حوالې په صیغه کې............ شرط دی او باید د عقد مجلس کې را منځ شي.

کورنۍ دنده

حواله له کفالت څخه څه توپیر لري؟ د دې موضوع په اړه پنځه کرښې ولیکئ.

---

(۱) بدایع الصنایع، ج ۲، ص ۱٦

# حواله ۲

په تېر درس کې مو حواله وپېژندله، په دې درس کې به د حوالې پای او د محال علیه رجوع په حواله کوونکي باندې وپېژنو.

## لومړی: د حوالې پای: حواله په لاندې شیانو پای مومي

۱. د محیل او محال علیه له خوا د حوالې فسخه کول یا له منځه وړل: هر کله چې حواله فسخه یا له منځه ولاړه شي، محال باید بېرته خپل شی له محیل څخه لاس ته راوړي.
۲. د محال علیه مړینه او یا مفلس کېدل: د محال علیه د مړینې او یا د مفلس کېدو په صورت کې حواله له منځه ځي او محال باید خپل پور له محیل څخه وغواړي.
۳. د محال علیه ادا، یعنې کله چې محال علیه حق محال ته وسپاري.
۴. کله چې محال مړ شي او محال علیه یې وارث وګرځي، د حوالې مال به محال علیه له محیل څخه غواړي.
۵. کله چې محال خپل حق محال علیه ته وبخښي او هغه یې ومني.
۶. کله چې محال خپل حق محال علیه ته خیرات ورکړي او هغه یې خیرات ومني.
۷. کله چې محال هغه چاته ابراء وکړي چې دا ورته حواله شوی او ورته ووایي چې زه له تا څخه هېڅ مطالبه نه لرم. [1]

**فعالیت:** ځو تنه زده کوونکي دې په انفرادي توګه د حوالې د یو یو شرط حکمت په هکله خپلو ملګرو ته معلومات ورکړي.

## په محیل باندې د محال علیه رجوع

دلته مونږ په دوه شیانو خبرې کوو

۱. د رجوع شرطونه.
۲. هغه څه چې په هغې باندې رجوع کېږي.

---

([1]) بدایع الصنایع، ۲/ ۱۸، فتح القدیر، ۵/ ۴۴۷

## لومړی: د رجوع شرطونه

۱. حواله باید د محیل په امر ترسره شوې وي.
۲. حواله شوی مال باید محال ته ورکړل شوی وي او یا د محال له خوا محال علیه ته ببښل شوی وي او یا خیرات ورکړل شوی وي او ده ورسره منلی وي.
۳. محیل باید په محال علیه باندې هم مثل پور ونلري.

## دویم: په څه به رجوع کېږي؟

محال علیه له محیل څخه د هغه څه غوښتنه کولای شي چې ده پرې حواله ورکړې وي، نه هغه شی چې محال ته ورکړل شوی وي، نو که چېرې محال علیه د پیسو پر ځای محال ته جـــنس ورکړي، له حواله کوونکي څخه به پیسې غواړي، نه جنس.

## د حوالې په اړه مسایل

### لومړۍ مسأله

د حوالې په پای کې مو ولوستل چې حواله د محال علیه په له مینځه تگ سره پای مومي. دا له مینځه تگ د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه په نظر په لاندې دوو شیانو صورت مومي:

۱. کله چې محال علیه مړ شي.
۲. کله چې محال علیه له حوالې څخه منکر او د قاضي له لوري قسم ورکړل شي، په داســې حال کې چې د حق خاوند هېڅ شاهدان ونه لري.

د صاحبینو په نظر په دریم شي هم راتلای شي هغه دا چې:

۳: کله چې محال علیه په ژوندانه کې مفلس او قاضي د ده په افلاس پرېکړه وکړي.

### دویمه مسأله

که چېرې د حق خاوند د حوالې مال ترلاسه کړي او بیا له حواله کوونکي سره اختلاف پیـــدا کړي:

حواله کوونکی وایي: ستا په ما باندې هېڅ نشته، بلکه ته ما د قبض لپاره وکیل کړی وې، څه چې دې ترلاسه کړي، هغه زما دي.

د حق خاوند وایي: نه داسې نه ده، بلکې تا ما ته د خپلو هغو زرو افغانیو پور ترلاسه کولـــو حواله راکړې چې له دې سړي څخه یې ترلاسه کړه، دې صورت کې:

د حواله کوونکي خبره له قسم سره د باور وړ ده، ځکه چې محال د پور ادعا کوي او حواله کوونکی منکر دی، بناءً د شاهدانو د نه لرلو په صورت کې د منکر خبره له لوړې سره د قبول وړ ده.

**سفتجه**

په حواله باندې د دا ډول پیسو استول جواز لري، هغه دا چې یو سړی چا ته یو اندازه مال د امانت په توګه په یو ښار کې ورکړي او بیا ترې په بل ښار کې تسلیم شي. [1]

## ارزونه

**أ. لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:**

۱. حواله په کومو شیانو پای ته رسېږي؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.

۲. د رجوع شرطونه ووایاست.

**ب. لاندې عبارات بشپړ کړئ:**

۱. دامام ابوحنیفه (رح) په نظر د.............. له مینځه تلو سره حواله پای مومي.

۲. کله چې د حق خاوند او حواله کوونکي تر منځ اختلاف منځ ته راشي، د.............. خبره په............ کولو سره د اعتبار وړ ده.

**کورنۍ دنده**

د حوالې د ګټو په اړه مختصره مقاله ولیکئ.

---

۱- الباب، ۲/ ۱٦۲

# وکالت ۱

احمد په کابل کې اوسيږي، غواړي چې په هرات کې يو موټر واخلي، د هغه ملګری محمـــود د هرات اوسيدونکی دی، هغه يې له خپلې خوا د موټر په اخيستلو کې وکيل ونيوه ترڅو ده ته موټر واخلي.

## د وکالت تعريف

وکالت په لغت کې د ساتنې، سپارنې او اعتماد په معنا راغلی دی.

او د فقهې په اصطلاح کې: په جايز او معلوم تصرف کې د ځان پر ځای د بل چا ټاکل وکالت بلل کيږي.[1]

## د وکالت د روا والي دليل

وکالت په قرآن کريم، نبوي احاديثو او اجماع باندې روا شوی دی.

**أ.** قرآن کريم: الله تعالی فرمايي: وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُواْ حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا إِن يُرِيدَا إِصْلاَحًا يُوَفِّقِ اللّهُ بَيْنَهُمَا إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا (۳۵) النساء: ۳۵

پدې آيت کريمه کې (حکمان) د ښځې او خاوند له لوري وکيلان دي.

**ب.** احاديث: رسول اللهﷺ حکيم بن حزام د قرباني له پاره د مال اخيستلو په خاطر وکيل کړی و، همدا راز يې عروة البارقي د پسه د اخيستلو له پاره وکيل نيولی و.[2]

**ج.** اجماع: د دې له پاره چې يو انسان نه شي کولای خپل ټول کارونه يوازې تر سره کړي، له دې امله د وکالت په روا والي باندې اجماع راغلې ده. ۳

---

[1]– و ګوره: بدائع الصنائع. ج: ۱. ص: ۱۹.

[2]– د دې حديث تخريج ابوداؤد او ترمذي کړی دی.

[3]– و ګوره: فتح القدير: ج، ۲. ص، ۶.

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې په انفرادي توګه د وکالت د شرطونو یو یو حکمت خپلو ملګرو ته بیان کړي.

## د وکالت حکم

وکالت په اصل کې یو مباح کار دی، خو ځینې وخت مستحب او مکروه هم راتلای شي، مګر په هغه صورت کې چې له موکل څخه ضرر دفع کوي بیا واجب دی.

## د وکالت د روا والي حکمت

داسې پېښېږي چې ځینې وخت یو انسان د ځینو کارونو له کولو څخه عاجز وي او دا کار بل څوک په ښه توګه کولای او مخ په وړاندې بېولای شي، له همدې ښېګنې او حکمت له پــاره وکالت روا شوی دی.

## د وکالت ارکان

د وکالت رکن ایجاب او قبول دی.

د وکالت اړوند ځینې اصطلاحات:

۱. موکل: هغه شخص دی چې په یو جایز او معلوم کار او تصرف کې د ځان پر ځای بل کس ته د کولو واک ورکوي.
۲. وکیل: هغه کس دی چې د موکل لخوا د ورکړل شوي واک په اساس دهغه له طرف یو کار ترسره کوي.
۳. موکل به: له هغه جایز او معلوم کار او تصرف څخه عبارت دی چې د موکل او وکیل تر منځ پرې اتفاق کېږي.

## د وکالت شرطونه

د وکالت ځینې شرطونه د وکیل، موکل او د وکالت د عقد په محل کې شرط دي.

أ. د وکیل شرطونه: وکیل څلور شرطونه لري:

۱. وکیل به عاقل وي، څو په عقد پوه شي، یعنې داسې چې بیعه یا پلورنه وپېژني.
۲. وکیل باید د عقد کولو قاصد وي، نه دا چې ټوکې او مسخرې کوي.
۳. وکیل باید معلوم او معین شخص وي، نه داسې چې دوو تنو ته ووایي، له تاسې څخه یو زما وکیل یاست، دا وکالت د جهالت له امله صحیح نه دی.
۴. وکیل به خپل موکل (هغه څوک چې دی یې وکیل نیسي) په کامله معنا پېژني یعنې، وصف او شهرت به یې ورته معلوم وي.

### ب. د موکل شرطونه: موکل دوه شرطونه لري:

۱. هغه څوک چې وکیل نیسي (موکل) باید عاقل وي، نو د لیوني توکیل صحیح نه دی.
۲. موکل به د هغو تصرفاتو چې وکیل ورته نیسي، مالک وي.

### ج. د عقد د محل یا موکل به شرطونه:

۱. هغه شیان او کارونه چې وکالت پرې ترسره کېږي، باید د مباحاتو څخه نه وي، نو د یو چا وکیل کول د معدنونو په راویستلو باندې روا نه دي.
۲. د عقد محل (موکل به) به د موکل ملکیت وي.
۳. موکل به له داسې ډلې څخه وي چې نیابت به مني، نو په بدني عباداتو لکه لمونځ باندې د یو چا وکیل کول روا نه دي.

### د وکالت احکام

د دې لپاره چې د وکالت احکام وپېژنو، باید ډولونه یې هم وپېژنو، نو د وکیلانو ډولونه دا دي:

۱. د خصومت وکیل: دا هغه وکیل دی چې د قاضي په وړاندې محاکمو کې د خپل موکل نیابت کوي، نوموړی پرته له قصاص او حدودو څخه په خپل موکل باندې د اقرار مالک دی، ځکه چې دا د مدعي د دعوې د ځواب، د حق روښانتیا او اثبات له پاره ټاکل شوی، نه د جنګ او جنجال په خاطر.
۲. د پور د اخیستلو له پاره وکیل: دا هغه وکیل دی چې د پور غوښتلو له پاره ټاکل کېږي.
۳. د اخیستلو او پلورلو له پاره وکیل: د هغه وکیل دی چې د موکل لخوا ورته د اخیستلو او پلورلو واک ورسپارل شوی وي.

### لومړی: د  خصومت د وکیل احکام:

۱. پرته له قصاص او حدودو څخه په نورو شیانو کې یواځې د اقرار واک لري.
۲. د قبض یا ترلاسه کولو واک ورسره نشته، ځکه یو څوک د لانجې ګټلو له پاره امین ګرځول کېږي، خو د مال په هکله معتمد نه وي.[1]

دویم:  د هغه وکیل احکام چې د پور غوښتنې له پاره ټاکل شوی وي:

۱. د پور ترلاسه کولو واک نه لري، ځکه چې یواځې د غوښتلو له پاره ټاکل شوی دی.
۲. دا واک هم نه لري چې بل څوک د ځان پر ځای وټاکي.

### دریم: د پلورنې او اخیستنې د وکیل احکام

[1]– و ګوره: فتح القدیر، ج: ٦. ص: ۹۷، المبسوط: ج:۱۹، ص: ۱۹.

دا وکیل به په خپلو کړنو کې آزاد او یا به یې تصرفات مقید وي، که چېرې یې تصرفات مقید وي، لاندې احکام لري:

۱. د هغه قیودو رعایت پرې لازم دی چې د موکل له لوري ورته ټاکل شوي دي.
۲. که چېرې د موکل له ټاکلو قیودو څخه مخالفت کوي بیا د موکل اجازې ته اړتیا لري.

خو که چېرې د موکل لخوا په تصرفاتو او کړنو کې آزاد وي، نو احکام یې دا دي:

۱. اخیستنه او پلورنه به په هغه پیسو کوي چې هغه وطن کې رایجې او چلند ولري.
۲. اخیستنه او پلورنه په مناسب ارزښت او قیمت ترسره کېږي.

**ارزونه**

لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱. وکالت په لغت اواصطلاح کې څه ته وایي ؟
۲. د وکیل، موکل او د عقد محل څخه څه مقصد دی؟
۳. د وکیل په اړه شرطونه ووایاست.
۴. د عقد د ځای شرطونه بیان کړئ.
۵. د خصومت وکیل اړوند احکام بیان کړئ.

لاندې عبارتونه بشپړ کړئ:

۱. موکل دوه شرطونه لري:
۲. موکل باید............................................ .
۳. په هغه څه کې چې وکیل په کې تصرف کوي، باید موکل د هغه................ وي.
۴. د خصومت وکیل: هغه وکیل دی چې د...... په وړاندې محاکمو کې د خپل ....... نیابت کوي.

**کورنۍ دنده**

د وکالت اړوند اصطلاحات په یادو زده کړئ او د وکالت په هکله په پنځو کرښو کې یوه مقاله ولیکئ.

# وکالت ۲

## د وکیلانو ډېروالی، د وکالت پای، د دې باب له ځینو اړوندو مسایلو سره

### ۱– د وکیلانو ډېروالی

ډېر داسې پېښېږي چې له یو تن څخه ډېر اشخاص په تصرفاتو او شخړو کې وکالت کوي، نو پدې صورت کې به یو شخص دوه یا ډېر وکیلان لري.

**الف:** که چېرې یو تن ډېر وکیلان پداسې توګه سره ولري چې هر یو ته یې ځانګړی عقد یـــا کار سپارلی وي، دې صورت کې به هر یو خپل کار پرته د بل وکیل له مشورې څخـــه مخ په وړاندې وړي.

**ب:** که چېرې یو سړي د یو کار لپاره ډېر وکیلان نیولي وي، دې صورت کې هیڅ یو ځانتـــه پرته د موکل له اجازې څخه ټاکلی کار نشي ترسره کولای، خو هغه کارونه کولای شي چې هغه مشورې ته اړتیا نلري، لکه د امانتونو سپارل او د پورونو پرې کول.

### ۲– د وکالت صفت:

**الف:** وکالت پرته له اجورې څخه

مفت وکالت کول روا دي، خو پدې بیا عاقدین ملزم ندي، نو هر یو کولای شي چې دا عقد فسخه کړي.

**ب:** په اجورې باندې وکالت: دا وکالت په دوه صورتونو کې راتلای شي:

۱. دا چې د انعام بڼه ولري، یعني چې په عقد کې وخت او کارونه ونه ټاکل شي، دې صورت کې جبري عقد ندی.

۲. خو که چېرې د اجورې بڼه ولري، یعني چې وخت او کار پکې وټاکل شي، بیا ملزم دی.[1]

### ۳– د وکالت پای: وکالت په لاندې شیانو باندې پای ته رسېږي:

۱. کله چې موکل خپل وکیل ګوښه کړي، خو پدې شرط چې وکیل پرې خبر وي او د بل کس حق ورسره تړاو ونلري.

---

[1]– وګوره: بدائع الصنائع: ۳۷/۶، الدر المختار: ۳۱۵/۷.

۲. کله چې موکل خپله د وکیل دنده ترسره کړي، ځکه چې دې وخت کې وکالت هیڅ ګټه نه لري.

۳. کله چې د وکالت غرض ترسره شي، یعنې هغه تصرف اجرا شي د کوم لپاره چې وکیل نیول شوی دی.

۴. کله چې وکیل خپل اهلیت په مړینه او یا دایمي لیونتوب سره د لاسه ورکړي.

۵. کله چې هغه عین له منځه ولاړ شي چې د هغې د تصرفاتو لپاره وکیل نیول شوی وي.

۶. د موکل له لاسه د موکل فیه وتل[۱].

**فعالیت:** وکالت له کفالت سره څه توپیر لري؟ په ډلهییز او یا انفرادي توګه دغه موضوع روښانه کړئ.

**د وکالت اړوند مسائل:**

۱. داسې وکالت هم شته چې هیڅ حقوق نلري، لکه: په چا پسې د تګ راتګ وکالت، پرته له ملازمت څخه هیڅ نلري.

۲. ځینې وکالتونه داسې دي چې حقوق یې وکیل ته راجع کېږي او بیا د نورو حقوق موکل ته راجع کېږي، بناءً:

**الف:** هر هغه عقد چې موکل ته یې د نسبت اړتیا نه وي، ځان ته یې نسبت کول صحیح کېږي، بناءً حقوق یې عاقد ته راجع کېږي، لکه: د پلورلو عقد، نو همدا وکیل به هغه چا ته چې ورباندې یې شی پلورلی، مبیعه سپاري او پیسې به ترلاسه کوي.

**ب:** که چېرې عقد داسې وي چې هغه د موکل نسبت ته اړتیا لري، د دې حقوق موکل ته راجع کېږي، لکه نکاح.

**ج:** همدا راز که چېرې داسې عقود وي چې د هغې تمام په قبض او ترلاسه کولو سره راځي، لکه بخشش، قرض او داسې نور، د دې نسبت به هم موکل ته کوي او حقوق یې هم همده ته راجع کېږي.

---

[۱]– الدر المختار: ج ۷ ص ۳۹۳، المبسوط ۱۹/۵۰، بدائع الصنائع: ۶/۳۸، تکملة فتح القدیر ۶/۱۲۶.

د اخیستلو د وکالت ډولونه: دا وکالت په دوه ډوله دی:

۱ – **عام**: هغه داسې چې موکل وکیل ته ووايي، څه چې دې خوښ وي، ما ته یې اخله یا څــه چې گورې، ما ته یې اخله.

۲ – **خاص**: داسې چې موکل خپل وکیل ته ووايي: ما ته جامې یا کور او یا غاړکۍ واخله.

**ارزونه**

۱. ایا یوکس کولای شي څو تنه وکیلان ونیسي؟ بیان یې کړئ.

۲. په اجورې سره د وکالت یو مثال ووایاست.

۳. کله وکالت پای مومي ؟ درې موارد یې ووایاست.

لاندې عبارات بشپړ کړئ:

۱. پرته له اجورې وکالت.................. دی، خو یو د عاقــدینوکولای شــي چــې عقد................ کړي.

د وکیل د گوښه کولو دوه شرطونه دي:

۲. ......................................................

۳. ......................................................

**کورنۍ دنده**

د درس مهم مطالب په خپل عبارت په پنځو کرښو کې ولیکئ.

# مضاربت

د مالونو له شرکتونو څخه يو ډول شرکت د مضاربت شرکت دی، هغه داسې چې پانګه د يو چا او کار وربانديې بل څوک کوي، دا شرکت له اجارې سره ورته والی لري، ځکـــه چـــې کارګر په مال کې د هومره ګټې مستحق دی چې څومره کار يې په مال کړی وي.

### د مضاربت تعريف

مضاربت په لغت کې د ضرب يا سفر په معنا دی، ځکه چې کارګر سفر ته اړتيا لري.

او د فقهاوو په اصطلاح کې: هغه عقد دی چې مالک مال د تجارت لپاره بل چا ته پداسې ډول ورکړي چې ګټه به دواړه د ټاکلي شرط سره سم وېشي. يا په بل عبارت، دا هغه شرکت دی چې مال د يو چا او تجارت وربانديې بل څوک کوي[1]. مضاربت ته قراض هم ويل کېږي.

**د مضاربت روا والی:** مضاربت په قرانکريم، احاديثو او اجماع بانديې ثابت دی.

**قران کريم:** الله جل جلاله فرمايي: «وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ»
(د المزمل سورت، ۲۰ آيت)

ژباړه: (... او نور په ځمکه کې ګرځي د الله جل جلاله د فضل (حـــلال رزق) لټونه کوي. مضارب هم په ځمکه کې د الله جل جلاله د فضل لټونه کوي.

**حديث:** د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې: ((حضرت عباس رضي الله عنه به چې کله د مضاربت لپاره چا ته مال ورکاوه، په مضارب بانديې به يې دا شرط ابښوده چې زما مال سره به په بحر کې نه ځې، نه به خوړونو ته کوزېږې او نه به وربانديې ژوندی مـــال اخلې، که چېرې دې دا کارونه وکړل، تاوان به يې ته ګالې، کله چې دا شـــرطونه رســـول الله صلی الله علیه وسلم تـــه ورسېدل، اجازه يې ورکړه[2].

**اجماع:** د صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين له ټولګې څخه په روايت کې راځي چـــې دوی د يتيم مال په مضاربت ورکړی او لدې څخه هيڅ چا انکار ندی کړی[3]، بناءً دا اجمـــاع شمېرل کېږي.

---

[1]- وګوره: المبسوط ۱۸/۲۲.

[2]- د دې تخريج طبراني په الاوسط کې کړی.

[3]- وګوره: نصب الراية ۱۱۳/۴.

## د مضاربت د روا والي حکمت

د مضاربت د روا والي حکمت دا دی چې خلکو ته له مال څخه د ګټې اخستلو لار برابره شي، یو له بل سره پداسې شکل مرسته وکړي چې یو د بل له تجربو څخه په استفادې ښه ګټه لاسته راوړي او بالاخره یوې غوره نتیجې ته ورسیږي.

## د مضاربت رکن

د مضاربت رکن ایجاب او قبول دی، په هغو الفاظو باندې چې په مضاربت دلالت کوي.

## د مضاربت ډولونه

مضاربت په دوه ډوله دی، مطلق مضاربت او مقید مضاربت:

### ۱–مطلق مضاربت

مطلق مضاربت هغه دی چې یو څوک بل چا ته خپل مال د مضاربت په نوم ورکړي او کار، د کار ځای، صفت او هغه کس چې ورسره معامله کوي، تعین نه کړي.

### ۲– مقید مضاربت

هغه مضاربت دی چې یو څوک چا ته ټاکلې اندازه روپۍ د معین ښار، معین مال، معین وخت او یا یو خاص شخص سره د معاملې کولو لپاره ورکړي، یعنې دا روپۍ پدې شرط درکوم چې اخیستل او خرڅول به د فلاني سره کوې.[1]

## د مضاربت حکم

مضاربت یو غیر لازم عقد دی، برابره ده چې د کار له پیل څخه مخکې وي او که وروسته، بناءً هر یو له عاقدینو څخه یې له منځه وړلای شي، همدارنګه په میراث هم نه وړل کیږي.

## د مضاربت شرطونه

د مضاربت د صحت لپاره ځینې شرطونه په عاقدینو، رأس المال (پانګه) او ګټه کې بېل بېل شرط شوي دي.

## د عاقدینو شرطونه

عاقدین د مال له خاوند او مضارب څخه عبارت دي. د دوی شرطونه کټ مټ د وکیل شرطونه دي چې مونږ په وکالت کې ذکر کړل.

---

[1]– بدائع الصنائع ۶/۷۸.

### د پانګې شرطونه

د مضاربت د رأس المال (پانګې) شرطونه دا دي:

۱. د مضاربت پانګه باید له چلېدونکو پیسو څخه وي.

۲. د مضاربت د پانګې اندازه باید معلومه وي.

۳. د مضاربت پانګه به معینه او موجوده وي، پور به نه وي.

۴. د مضاربت پانګه به کاریګر (مضارب) ته سپارل کېږي.

### د ګټې شرطونه

د ګټې شرطونه په لاندې ډول دي:

۱. د ګټې اندازه به څرګنده وي.

۲. ګټه به تیته او پراګنده وي، یعنې په نیمایي، دریمه یا څلورمه به دواړه سره متفق شوي وي.

**فعالیت:** ځو تنه زده کوونکي دې د مضاربت مختلف شکلونه تمثیل کړي.

#### ارزونه

لاندې شیان تعریف کړئ:

۱. مضاربت لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

۲. مطلق او مقید مضاربت تعریف کړئ.

۳. د مضاربت حکم څه دی؟

۴. په مضاربت کې د رأس مال شرطونه بیان کړئ.

۵. په مضاربت کې د ګټې شرطونه وواياست.

#### کورنۍ دنده

د مطلق او مقید مضاربت صورتونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# مضاربت ۲

په تېر درس کې مو مضاربت د ارکانو او شرایطو سره وپېژانده، په دې درس کې د مضاربت احکام او هغه شیان چې مضاربت وربانديې پای مومي، وړاندې کوو.

هر کله چې مضاربت د یو شرط د خلل له امله فاسد شو، مضارب د مناسبې مزدورۍ مستحق ګڼل کېږي او په ګټه کې نشي شریکیدای، نو که چېرې یو څوک چا ته ووایي: زما جال د ښکار لپاره واخله، څه چې دې ښکار کړل، د مضاربت په توګه زما او ستا تر منځ شریک دي، په دې صورت کې د مضارب لپاره د مضاربت په اساس هیڅ نشته، ځکه دا صحیح مضاربت ندی او نه وربانديې د صحیح مضاربت احکام پلي کېږي، بلکې دې سړي ته به مناسبه مزدوري ورکول کېږي، برابره ده چې نوموړي مضاربت ګټه کړې وي او که نه، ځکه چې فاسد مضاربت د فاسدې اجارې غوندې دی.

## د صحیح مضاربت احکام:

۱. مضارب (کاریګر) چې کومه پانګه په لاس کې لري، ورسره امانت ده او دی په خپله امین ګڼل کېږي، ځکه چې ده دا مال د خپل مالک په اجازه قبض کړی دی.
۲. مضارب په اخیستنې او پلورنې کې وکیل ګڼل کېږي، ځکه دی د هغه کار په اساس چې ده ترسره کړی دی، د مال د یوې برخې مالک وګرځید.
۳. مضارب په مضاربت کې د خپلې برخې د ګټې په اندازه شریک شمېرل کېږي، ځکه دی د مال د ځینې برخې مالک وګرځید د هغه کار په اساس چې ده ترسره کړی دی.
۴. کله چې په یو سبب د اسبابو سره مضاربت فاسد شو، اجاره ګرځي او مضارب د مال د خاوند مزدور دی، نو مناسبه اجوره به ورکول کېږي.
۵. که چېرې مضارب د عقد ټاکلو له شرطونو څخه مخالفت وکړي، غاصب شمېرل کېږي، ځکه ده د بل چا په ملکیت تیری کړی دی.
۶. د مضاربت تاوان د مال په خاوند دی، په هغه صورت کې چې ګټه شتون ونلري، خو که چېرې له ګټې څخه وروسته تاوان رامنځ ته شوی وي، دا تاوان به له ګټې څخه ورکول کېږي[1].

---

[1]- مختصر الطحاوي ۱۲۴.

**فعالیت:** زده کوونکي دې د فاسد مضاربت د مثالونو په هکله په خپلو منځــوکې مباحثــه وکړي.

**د مضاربت پای:** مضاربت په لاندې شیانو سره پای مومي:

۱. په فسخه او له منځه وړلو باندې مضاربت پای مومي.
۲. کله چې مضارب له تصرفاتو څخه منع شي، مضاربت پای ته رسېږي.
۳. کله چې یو له عاقدینو څخه، د مال خاوند یا مضارب مړ شي.
۴. کله چې یو له عاقدینو څخه لیونی شي.
۵. کله چې د مضاربت پانګه د مضارب په لاس کې له منځه ولاړه شي.

**د مضاربت په هکله مسئلې:**

۱. کله چې د مضارب لپاره پرته له تجارتي مال څخه ګټه وټاکل شي، مضاربت جواز نلري.
۲. مضارب دا واک لري چې د مضاربت مال بل چا ته د دې لپاره ورکړي چې له بل ښــار څخه ورته سامان راوړي، پداسې حال کې چې اجوره یې ورسره نه وي منلې.
۳. مضارب دا واک نلري چې د مضاربت مال بل چا ته د مضاربت لپاره ورکړي او له چــا سره شریک شي او نه یې له خپل او بل مال سره ګډولای شي، خو که چېرې د مال خاوند ورته داسې ویلي وي چې کارونه پخپله خوښه کوه، بیا خپلواک دی.
۴. مضارب به خپل واجبي مصارف د مضاربت له مال څخه کوي، دوا او د علاج مصارف هم په واجبي نفقاتو کې شمېرل کېږي، ځکه د بدن اصلاح یې پدې باندې راځي او پرته لــه جوړ صحته هیڅ تجارت نشي کولای.
۵. که چېرې مضاربت ګټه کړې وي، مصارف به له همدې څخه کېږي او که چېرې یې ګټه نه وي کړې، بیا به له پانګې څخه حسابیږي، ځکه چې مصارف د مال له منځه تللې برخه ده.
٦. که چېرې د مضارب او د مال د خاوند تر منځ د مال د بېرته ورکړې په هکله اخــتلاف رامنځ ته شو، د مال د خاوند خبره د باور وړ ده.
۷. مضارب ته به تر هغه پورې ګټه نه ورکول کېږي تر څو چې مال په پیسو بــدل نــشي او د مــال خاوند ته یې نقدي تسلیم کړې نه وي.

### ارزونه

**الف:** لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. په کومو حالاتو کې اجر مثل د مال په خاوند باندې لازمېږي.

۲. د مضاربت اړوند ځينې احکام ووایاست.

۳. د مضاربت عقد څه وخت له منځه ځي؟ په لنډ ډول يې بيان کړئ؟

۴. ایا مضارب کولای شي مضاربت مال بل چا ته په مضاربت ورکړي؟

۵. مضاربت کوونکی د مضاربت اړوند مصارف له کوم ځای څخه پوره کوي؟ موضوع روښانه کړئ.

**ب:** لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. هغه مهم حالات چې مضاربورباندې د مناسبې مزدورۍ مستحق ګرځي، عبارت دي له...........

۲. ستاسې په مقرر کتاب کې د صحیح مضاربت احکام عبارت دي له...........

۳. مضاربت پدې.............. شیانو پای مومي.

**کورنۍ دنده**

د لوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## هبه

هبه ډالۍ او صدقې ته شامله ده، ځکه چې معناوې يې سره نږدې دي، که چېرې څوک څه شی کوم اړ سړي ته د الله‌ﷻ د رضا په خاطر ورکړي، دا صدقه ده، خو که چېرې يې چا تــه د دوستۍ له کبله ورکړي، بيا هديه ده، خو که دا يوه معنا هم پکې موجوده نه وي، بيا هبه ده.

### د هبې معنا

هبه په لغت کې ورکړې او تبرع ته وايي.[1]

او د فقهاوو په اصطلاح کې هر هغه عقد او تړون چې په ژوندانه کې پخپله خوښه پرته له کوم عوض څخه بل ته ملکيت ثابتوي، هبه بلل کېږي.[2]

### د هبې د روا والي دليل

هبه په قران کريم، احاديثو او اجماع باندې روا شوې ده.

١. **قران کريم:** الله‌ﷻ فرمايي: «فَإِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ نَفْسًا فَكُلُوهُ هَنِيئًا مَرِيئًا» (ســورة النساء، ۴ آيت) ژباړه: که چېرې تاسې ته خپلو ښځو د مهر څه برخه درووبښله، نــو پــه خوښۍ سره يې وخورئ.

٢. **سنت:** نبي اکرمﷺ فرمايي: «لَا تَحْقِرَنَّ إِحْدَاكُنَّ أَنْ تُهْدِيَ لِجَارَتِهَا وَلَوْ كُرَاعَ شَاةٍ مُحْرَقًا».[3] ژباړه: که يوه ښځه خپلې گاونډۍ ته په هديه کې د پسه يو ښنگرى (سوم) ورکوي، هغه دې هم سپک نه گڼي.

٣. **اجماع:** د هبې د ټولو ډولونو په استحباب اجماع شوې ده.

**د هبې رکن:** ايجاب او قبول له قبض سره د هبې رکن دی.[4]

**فعاليت:** يو شمېر زده کوونکي دې د هبې څو صورتونه تمثيل کړي.

**د هبې شرطونه:** هبه ځانگړي شرطونه لري چې په لاندې ډول بيانېږي:

١. هبه کوونکی بايد د هبې (بخشش) ورکولو اهليت ولري يعني عاقل او بالغ وي.
٢. موهوب ( ښښل شوی شی ) بايد د هبې په وخت کې موجود وي.
٣. موهوب بايد ارزښتناک مال وي، نو د تبنتيدلي اوښ هبه صحيح نده.
۴. موهوب بايد مملوک مال وي، نو د مباحاتو ښښل صحيح ندي.
۵. موهوب بايد د هبه کوونکي ملکيت وي، د بل چا د مال هبه کول صحيح نه دي.

---

[1]- لسان العرب ۸۰۳/۱.
[2]- فتح القدير ۱۱۳/۷.
[3]- موطأ امام مالک (رح).
[4]- المبسوط ۷۵/۱۲.

٦. موهوب مال باید جلا شوی او په امان کې وي، د تیت او خور شي هبه کول صحیح ندي.
٧. د موهوب مال قبض باید د واهب په اجازه ترسره شوی وي.

## د قبض ډولونه

د هبې قبض په دوه ډوله راتلای شي چې یو ته اصالتاً او بل ته نیابتاً قبض ویل کېږي.

١- **اصالتاً قبض:** هغه قبض دی چې یو سړی پخپله د ځان لپاره شی قبض کـــړي، د جـــواز شرط یې یواځې عقل دی، بلوغ ورته شرط ندی، نو د لیوني قبض صحیح ندی.

٢- **نیابتاً قبض:** هغه قبض دی چې د ماشوم پر ځای د هغه ولي یې ترلاسه کړي، د جواز شرط یې د ولایت موجودیت او سرپرستي ده.[١]

## د هبې حکم

د ملکیت ثبوت دی، د هغه چا لپاره چې هبه ورته شوې وي، پداسې توګه سره چې رجوع او فسخه یکې راتلای شي، رسول الله ﷺ فرمایي: ((واهب ببر ته خپل ببنلی مـــال په هغه صورت کې غوښتلای شي چې عوض یې نه وي اخیستی.))[٢]

### ارزونه

**الف: لاندې پوښتنې ځواب کړئ:**

١. هبه په لغت او اصطلاح کې څه ته وایي؟
٢. د هبې شرطونه بیان کړئ.
٣. قبض په څو لارو سرته رسېږي؟ واضح یې کړئ.
۴. د هبې حکم ووایاست.

**ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:**

١. هبه ورکوونکی باید د......... د............ اهلیت ولري.
٢. رسول الله ﷺ فرمایي: ((واهب خپل ببنلی مال ببر ته غوښتلای شي تر څو چې.................. نه وي اخیستی.))٣

### کورنۍ دنده

دلوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

---

[١]- بدائع الصنائع: ج ۵ ص ١٢٦.
[٢]- نصب الرایه ١٢۵/۴.
[٣]- نصب الرایه ١٢۵/۴.

# هبه ۲

په تیر درس کې مو د هبې تعریف، شرایط او ارکان وپيژندل، اوس پدې هکله نوره څېړنه کوو او په هبه باندې د رجوع موانع او خپلو اولادونو ته یې ورکړه او داسې نور بیانوو.

## لومړی: په هبه باندې د رجوع موانع

احمد محمود ته غوا وبښله، وروسته له څه مودې بېرته پښیمانه شو، غواړي چې بېرته خپله غوا له محمود څخه واخلي، ایا دا کار ورته روا دی او که نه؟

دا کار په خپل ذات کې روا دی، خو دا یو کمزوری عمل دی چې د انسان له شان سره مناسب نه دی، خو په ځینو صورتونو کې د موانعو له امله رجوعورباندې روا نده.

### پر هبه باندې د رجوع موانع

۱. کله چې د هبې مالي عوض ورکړل شي:
یعنې واهب ته د هبې مالي بدله ورکړي او واهب دا عوض قبض کړي، بیا خپل بښل شوی شی نشي غوښتلای.

۲. کله چې خپلوانو ته شی وبښل شي:
که چېرې یو څوک خپلو داسې خپلوانو ته چې د ده له محارمو څخه وي، مال بخشش کړي، بېرته یې ورڅخه نشي غوښتلای، ځکه چې خپلوي معنوي عوض دی.

۳. کله چې بښل شوي شي کې زیاتوالی وشي:
یعنې بښل شوې غوا بچی وزیږوي او یا ټوټه وي، وګنډل شي، بیا یې غوښتل روا ندي.

۴. کله چې موهوب له ملکیت څخه ووځي: یعنې یا یې خرڅ کړي او یا یې بل چا ته بښلی وي، رجوع ورباندې نشي کولای.

۵. کله چې یو له عاقدینو څخه خپل ژوند له لاسه ورکړي.

٦. کله چې بښل شوی شی له منځه ولاړ شي.

۷. کله چې ښځه خپل خاوند او یا خاوند خپلې ښځې ته شی بخشش کړي، بیا یې هم نشي غوښتلای.

## دویم: اولاد ته ورکړه

خپل اولاد ته په ورکړه کې مساوات مستحب دی او د روغتیا په حالت کې یو پر بل غوره کول مکروه دي.

له مستحب مساوات څخه مراد کوم ډول مساوات دی؟ پدې هکله فقهاء په دوو ډلو وېشل شوي دي:

**۱–د امام ابو یوسف رحمه الله تعالی نظر:**

د پلار لپاره دا مستحب ده چې په ورکړه کې د نارینه او ښځینه اولاد تر منځ مساوات مراعات کړي، د دې دلیل د نبي اکرمﷺ دا حدیث دی چې فرمايي: ((تاسې په ورکړه کې د بچو تر منځ برابري مراعت کړئ، که زه چېرې غوره والی کوونکي وای، ما به ښځینه اولاد ته په نارینه وو باندې غوره والی ورکړي وای.))[1]

**۲–د امام محمد رحمه الله تعالی نظر**

امام محمد رحمه الله تعالی وايي: پلار ته پکار ده چې د اولادونو تر منځ په ژوند کې هغه ویش وکړي چې الله تعالی په میراث کې کړی، یعنې په ژوند کې دې هم نارینه اولاد ته د ښځینه اولاد په پرتله دوه چنده ورکوي، ځکه دا ویش اللهﷻ کړی دی.

**فعالیت:** څو تنه زده کوونکي دې په ډله ییزه او یا انفرادي توګه د هبې د یو یو شرط د حکمت په اړه خپلو ملګرو ته معلومات ورکړي.

**دریم: په ورکړه کې مساوات او برابروالی**

په ورکړه کې د اولادونو تر منځ د برابري او مساوات خیال ساتل واجب نه دي، بلکې یو مستحب عمل دی، نو که چېرې یو څوک ځینو اولادونو ته په نورو باندې زیاتوالی کوي، صحیح دی، سره له کراهیته، څو هغه احادیث چې په برابروالي باندې امر کوي، په استحباب محمول دي.

**څلورم: مور او پلار ته ورکړه**

مور او پلار ته په ورکړه کې د مساوات او برابري خیال ساتل سنت دي، څو ځینې وختونه د مور غوره والی په پلار باندې په زیاته ورکړه او عزت کولو سره جواز لري، نظر په هغه احادیثو چې پدې هکله راغلي دي.

---

[1]– قال علیه السلام: ((سووا بین اولادکم في العطیة ولو کنت مؤثراً لآثرت النساء علی الرجال)) مجمع الزوائد ۱۵۳/۳.

### پنځم: ورونو او خویندو ته ورکړه

په هبو او بخششونو کې د ورونو او خویندو تر منځ تعادل ساتل مستحب دي، په هغه صورت کې چې په اړتیاوو کې سره برابر وي، خو د مشر خاص کول په څه زیات شي جـــواز لـــري، رسول الله ﷺ فرمايي: ((مشر ورو د پلار ځای لري)).[1]

### د هبې په هکله مسئلې

۱. که چېرې یو څوک چا ته داسې غوا چې ګېډه کې یې بچی وي، پرته له بچي هبه کــړي، روا ندي، ځکه دا داسې هبه ده چې په بل شي سره مشغوله او بنده ده.

۲. که چېرې څوک چا ته داسې شی چې وېشل شوی او بېل شوی وي، وبښي، حال دا چې د قـــبض او ترلاسه کولو اجازه ورنکړي، خو که د واهب په وړاندې قبض او ترلاسه شي روا دي.

#### ارزونه

أ. لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱. د هبې د بېر ته غوښتنې موانع بیان کړئ.

۲. په کومو حالاتوکې مور او پلار ته د اولاد ترمنځ توپیر کول روا دي؟

۳. ایا ځوی کولای شي چې د مور او پلار او یا له خپلوانو څخه هغه تحفه چې ورکړې وه، بېرته واخلي؟

ب لاندې عبارات بشپړ کړئ:

۱. که چېرې څوک چا ته غوا پرته له هغه بچي چې ګېډه کې یې دی، هبه کړي.......

۲. د هبې د بېرته اخیستلو غوښتنه صحیح نده، خو په........ او یا د..........په پریکړه صحیح ده.

**کورنۍ دنده**

د لوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکئ او خپلې کورنۍ ته دغه لوست ولولئ.

[1]- بیهقي او طبراني روایت کړی دی.

# وديعت (امانت)

احمد زيد ته وايي: دا راډيو واخله، ما ته يې وساته او يا دا له تا سره امانت شوه. دې عمل ته وديعت وايي.

**د وديعې معنا**

وديعه د (و، د، ع) له تورو څخه اخېستل شوې چې په لغت کې ترک او پرېښودلو ته وايـــي، يعنې له بل چا سره د ساتنې پخاطر د يو شي اېښودلو ته وديعه وايي.

**او د فقهاوو په اصطلاح کې:**

صريحاً او يا دلالتاً په خپل مال باندې د بل چا مسلطول، د حفاظت او ساتنې لپاره، وديعه بلل کېږي.[۱]

**اصطلاحات**

**مُودِع:** د دال په زېر سره، امانت ورکوونکي ته وايي

**مُودَع:** د دال په زور باندې امانت اخستونکي ته وايي.

## د امانت د روا والي دليل

ايداع يا امانت اېښودل په قران کريم او احاديثو باندې روا شوي دي.

لومړی قران کريم: الله ﷻ فرمايي: «إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا» (النـــساء، ۸) الله ﷻ تاسې ته امر کوي چې امانتونه هغه چا ته وسپارئ چې اهليت يې لري.

**دويم حديث:**

نبي اکرم ﷺ فرمايي: «أَدِّ الأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ وَلاَ تَخُنْ مَنْ خَانَكَ»[۲] ژباړه: چا چې امين ګڼلی يې، هغه ته خپل امانت وسپاره او له هغه چا سره خيانت مه کوه چې له تا سره يې خيانت کړی دی.

## د امانت يا وديعت رکن

د وديعت رکن ايجاب او قبول دی.

د وديعت په عاقدينو کې يواځې عقل شرط دی او بلوغ ته اړتيا نه ليدل کېږي.

---

۱– حاشيه ابن عابدين ۵۱۵/۴.

۲– ابو داود او ترمذي روايت کړی دی.

**فعالیت**: یو شمېر زده کوونکي دې د ودیعت صورت په ټولګي کې تمثیل کړي.

**د امانت حکم**: په لازمي او حتمي ډول مالک ته د شي ساتل د امانت حکم دی.

**د امانت د ساتلو لیارې**

هغه څوک چې امانت ورسره اېښودل شوی دی، د امانت په ساتلو داسې مکلف دی لکه څنګه چې خپل مال ساتي او په هغه چا به یې ساتي چې د ده په عیال کې شامل وي او په ده یې نفقه لازمه وي، لکه د ده ښځه، زوی او مزدور یې.

ایا ودیعه تاوان لري او که څنګه؟

له چا څخه د ساتنې لپاره د امانت اخیستل د ثواب کار دی، خو د دې مال ساتنه به د خپل مال په څېر کوي او د ده له تقصیر څخه پرته د مال د تلف په صورت کې په ده باندې تاوان نه لازمېږي، څکه نبي اکرمﷺ فرمایي: «په هغه چا باندې چې امانت ورسره اېښودل شوی، تاوان نشته، خو په هغه صورت کې چې خیانت یې کړی وي، بیا به تاوان ورکوي»[1]

**فعالیت**: څو تنه زده کوونکي دې په انفرادي توګه د ودیعت د هر شرط د حکمت په هکله خپلو ملګرو ته معلومات ورکړي.

**د امانت د تاوانیدو حالات**: په لاندې حالاتو کې د امانت تاوان ورکول لازمېږي:

١. هغه څوک چې امانت ورسره اېښودل شوی، د امانت ساتل پرېږدي.
٢. کله چې مؤتمن امانت له هغه چا سره کېږدي چې هغه د ده په عیال کې نه وي او یا یې هغه چا ته ورکړي چې دی ورباندې خپل مال عادتاً نه ساتي.
٣. کله چې د امانت مال هغه څوک استعمال کړي چې ورسره اېښودل شوی، یعنې امانت استعمال کړي او ګټه ترېنه واخلي.
۴. کله چې له امانت څخه منکر شي.
۵. کله چې امانت له خپل مال سره ګډ کړي.
٦. کله چې مُودَع د مُودِع د ساتنې له شرایطو څخه مخالفت وکړي، یعنې د هغه د ټاکلو شرایطو لاندې یې ونه ساتي.

**امانت په لاندې حالاتو کې پای مومي:**

١. کله چې امانت مال بېر ته خپل خاوند ته ورکړي.

[1]– بیهقي او دار قطني روایت کړی دی.

۲. کله چې یو له عاقدینو څخه خپل ژوند یا اهلیت له لاسه ورکړي.
۳. کله چې د امانت مال مالک بل څوک وګرځي، یعنې ملکیت یې انتقال ومومي.

**د امانت اړوند مسائل:**

۱. کله چې د امانت ساتونکي او امانت ورکوونکي تر منځ اختلاف څرګند شي، امانت ساتونکی ووایي: ستا امانت ما سره له منځه ولاړ او یا ما درکړ، حال دا چې امانت ورکوونکی ووایي: نه داسې نده، نو د هغه چا خبره د باور وړ ده چې امانت ورسره اېښودل شوی دی، ځکه چې په ساتنه باندې امین ګڼل شوی دی.
۲. که چېرې دوه تنه له یو سړي سره څه شی امانت کېږدي او دواړه ولاړ شي، وروسته یو راشي او خپله برخه وغواړي، ده ته به تر هغه چې بل ملګری یې نه وي حاضر شوی، خپله حصه نه ورکول کېږي.[1]

ارزونه

۱– لاندې شیان بیان کړئ:

- ودیعه یا امانت لغتاً او صطلاحاً تعریف کړئ.
- امانت باید څرنګه وساتل شي؟
- د امانت ساتوونکی په کومو حالاتوکې ضامن ګڼل کېږي؟
- په کومو حالاتوکې امانت پای مومي؟
- که چېرې د امانت خاوند او د هغه ساتوونکي ترمنځ اختلاف پیدا شي، نو د کوم یو خبره د اعتبار وړده؟ واضح یې کړئ.

۲– لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

- مودِّع ته............ هم ویل کېږي، اوهمدارنګه مودَّع ته............... ویل کېږي.
- د امانت ساتوونکی ضامن نه وي، په هغه حالت کې چې................ .

**کورنۍ دنده**

د خلکو د امانتونوکېښودل او د هغو د ساتلو د ګټو تر عنوان لاندې په پنځو کرښو کې یوه مقاله ولیکئ.

[1]– المبسوط: ۱۲۳/۱۱.

# مدینې منورې ته د نبي کریمﷺ هجرت

## له هجرت څخه مخکې

کله چې د مدینې منورې مشرانو له نبي کریمﷺ سره د عقبې دویم بیعت وکړ او قریش لدې بیعت څخه خبر شول، نو د مکې د مشرکینو ضرر رسول لاپسې زیات شول، ځکه دوی پوهېدل چې له مسلمانانو سره د مدینې منورې د اوس او خزرج قبیلو مرسته د مسلمانانو د قوت لامل گرځي.

پدې وخت کې مسلمانان نبي کریمﷺ ته راغلل او له هغه څخه یې مدینې منورې ته د تللو اجازه وغوښتله، نبي کریمﷺ مدینې منورې ته د هجرت اجازه ورکړه او مسلمانانو مدینې منورې ته په پټه توگه هجرت پیل کړ.

### د هجرت په اړه د ابوبکر صدیقؓ غوښتنه

ابو بکر صدیقؓ هم نبي کریمﷺ ته تشریف یووړ او مدینې منورې ته یې د هجرت اجازه ورڅخه وغوښته، خو نبي کریمﷺ ورته وویل: یو څه وخت دې انتظار وباسي، امکان شته چې الله تعالی ورته ملگری پیدا کړي.

د دې خبرې په اورېدو سره ابوبکر صدیقؓ ډېر خوښ شو او د سفر لپاره په تیارې نیولو بوخت شو، دوه قوي اوښان یې تیار کړل.

### د مکې د مشرکینو د مشرانو دسیسه

د قریشو مشرانو دا خبره حس کړه چې نبي کریمﷺ مدینې منورې ته هجرت کوي او کله چې نبي کریمﷺ مدینې منورې ته هجرت وکړي، نو شونې ده چې مسلمانان به د عزت او قدرت خاوندان شي چې دا به د دوی لپاره لوی خطر وي، لدې امله دوی په دار الندوة کې را ټول شول چې پدې وخت کې ابلیس هم د نجد د خلکو په جامه کې دې مجلس ته ورغی او جلسه پیل شوه.

یوه وویل: پرېږدئ چې محمدﷺ له مکې څخه بهر شي او موږ یې له شر څخه په آرام شو.

ابلیس وویل: دا خبره سمه نده، ځکه هغه کولای شي چې په خپل ځان خلک راټول کړي او په راتلونکي کې ستاسو لپاره ډېرې ستونزې پیدا کړي.

بل وويل: هغه بندي كوو تر هغه چې مړ شي.
ابليس وويل: دا هم سمه خبره نده، ځکه چې ملګري يې خبرېږي او هغه لــه مــوږ څخــه خلاصوي.
ابو جهل وويل: له هرې قبيلې څخه يو تکړه ځوان ټاکو او هر يوه ته تېره توره ورکوو، تر څو ټول په يو ځای په محمدﷺ باندې حمله وکړي او هغه په يو وژونکي ګوزار سره ووژني چې پدې صورت کې به د محمدﷺ قبيله (عبد مناف) ونشي کولای له ټولو عربو سره جنګ وکړي، نو په پای کې به اړ شي چې د ديت اخيستلو ته غاړه کېږدي.
ابليس وويل: همدا معقوله خبره ده.
پدې ترتيب ټول له ابليس او ابو جهل سره پدې نظر کې سره شريک شول او ټول اتفاق ته ورسېدل.
لدې توطئې څخه د نبي کريمﷺ خبرېدل: پدې وخت کې جبرئيل امين نبي کريمﷺ ته راغی او ورته وېې وويل چې: د هجرت تياری ونيسه او نن شپه په خپله بستره کې مه ويده کېږه، هماغه و چې نبي کريمﷺ د هجرت تياری ونيو.
حضرت علي رضي الله عنه ته دنده سپارل: څرنګه چې له نبي کريمﷺ سره د مکې د خلکو ډېر امانتونه موجود وو او هغهﷺ نه غوښتل چې دا امانتونه ضايع شي او همدارنګه د دې لپاره چې ابو جهل او ملګري يې دا ګومان وکړي چې نبي کريمﷺ تر اوسه پورې په خپل کور کې دی، نو حضرت علي رضي الله عنه ته يې وظيفه وسپارله چې د ده په کور کې پاتې شي، څو خلکو ته يې خپل امانتونه وسپاري او د قريشو توطئه جوړوونکي مصروف وساتي او ورته يې لارښوونه وکړه چې هوښيار او خپل حال ته متوجه واوسي، همدارنګه دا ډاډ يې هم ورکړ چې کفار ده ته هېڅ ضرر نشي رسولای، ځکه نبي کريمﷺ خبر درلود چې قريشو يوازې د هغهﷺ د قتل دسيسه جوړه کړې ده او د نورو د قتل او ضرر له پاره هېڅ تصميم نه لري.
له خپل کور څخه د نبي کريمﷺ وتل: نبي کريمﷺ د بعثت په څوارلسم کال د صفرې د مياشتې په اووه ويشتمه نېټه له خپل کور څخه ووت، په خپل لاس کې يې يو موټی خاورې واخيستې، هغه يې د مشرکانو په سرونو وشيندلې او د کفارو د صفونو له منځه پداسې حال کې تېر شو چې د يس سورت يې تلاوت کاوه. څه وخت وروسته دوی متوجه شول چې د هغوی د هر يوه په سر خاورې پرتې دي، يوه وويل: محمدﷺ له کور څخه وتلی دی.

کفار وارخطا شول، کله چې دوی کور ته ننوتل نو ويې ليدل چې نبي کريمﷺ په خپله بستره کې نشته او پر ځای يې حضرت علي رضي الله عنه پيدا کړ.

**د ثور غار ته ورتګ:** مشرکينو د نبي کريمﷺ د پيدا کولو په منظور هر لوري ته کوښښونه پيل کړل، خو نبي کريمﷺ پدې توانېدلی و چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه په ملګرتيا سره د ثور غره ته (چې د مکې مکرمې په جنوب ختيځ خوا کې موقعيت لري) ولاړ شي او هلته په يوه غار کې پناه واخلي.






## د ثور په غار کې د نبي کريمﷺ پاتې کېدل



نبي کريمﷺ له ابوبکر صديق رضي الله عنه سره د ثور په غار کې درې ورځې پاتې شو او پدې دريو ورځو کې هره شپه د ابوبکر صديق رضي الله عنه د زوی عبدالله په واسطه د مکې د خلکو له احوال څخه خبرېدل او عامر بن فهيره به (چې د ابوبکر صديق رضي الله عنه غلام و) هره ورځ خپل پسونه د څرولو له پاره دې ځای ته راوستل او کله به چې دوی دواړو د هغو له شيدو څخه استفاده وکړه نو د شپې په تياره کې به بېرته مکې ته را ستنېده.
نبي کريمﷺ دا درک کړې وه چې د مکې مشرکين به له ټولو څخه مخکې د مدينې منورې لاره (چې د مکې مکرمې شمال لور ته موقعيت لري) ډېره وڅاري او تر خپل نظر لاندې به يې ونيسي، نو لدې امله يې د مکې مکرمې جنوب لورى چې په تمامه معنا معکوس او بې گومانه وه غوره کړه. له دريو ورځو وروسته د عبدالله بن اريقط په ملگرتيا د مدينې منورې په لوري وخوځېدل او له آتو شپو ورځو تېرولو ورسته مدينې منورې ته ورسېدل.
**د جايزې او انعام ټاکل:** قريش چې د خپلې دسيسې د ناکامېدلو له امله پرېشانه شوي وو، د بېړنۍ ناستې په پای کې يې تصميم ونيوه چې د هغوی د نيولو له پاره له هرې ممکنې وسيلې څخه کار واخلي، نو لدې امله يې سره لدې چې د مکې مکرمې څخه د وتلو ټولې لارې يې تړلې وې، داسې اعلان وکړ: هر هغه چا چې دوی دواړه يې موږ ته په لاس راکړل، سل (۱۰۰) اوښان به انعام ورکړو.

**د سراقه بن مالک هڅه:** د دې اعلان له امله سراقه بن مالک (چې په هغه وخت کې مشرک و) د هغو خلکو له جملې څخه و چې په هر لوري يې کوښښ کولو تر څو د نبي کريمﷺ کوم اثر پيدا کړي او د دغې لويې جايزې وړ وګرځي.

**په ځمکه کې د سراقه بن مالک د آس پښې خښېدل:** سراقه وکولای شو چې نبي کريمﷺ ووينې، خو کله يې چې کوښښ وکړ څو خپل ځان نبي کريمﷺ ته نږدې کړي، نو د آس پښې يې دوه ځلې په ځمکه کې ننوتلې، سراقه پدې متيقن شو چې الله تعالی د خپل پيغمبرﷺ حفاظت کوي او دی هېڅکله نه شي کولای چې هغه ته ضرر ورسوي، نو همااغه و چې سراقه وعده وکړه چې دی به د نبي کريمﷺ په اړه هېچا ته څه نه وايي او پدې ترتيب سره سراقه مکې ته وګرځېد.

**فعاليت:** لاندينيو کسانو د نبي کريمﷺ په هجرت کې څه رول لوبولی دی؟:

ابوبکر، ابو جهل، حضرت علي،

سراقه بن مالک، عامر بن فهيره، عبد الله بن اريقط.

زده کوونکي دې پدې فعاليت کې په انفرادي او ډله ييزه توګه برخه واخلي.

### د لوست ګټې

۱. سره لدې چې مسلمانان د الله تعالی په مرسته يقين لري، خو بيا هم بايد د کارونو په سرته رسولو کې پلان، احتياطي تدابير او اسباب په پام کې ولري.

۲. د امانتونو سپارل خپلو خاوندانو ته اسلامي فريضه ده، آن تر دې چې په بېړنيو حالاتو کې هم بايد ورته پام وشي.

۳. د نبي کريمﷺ په وړاندې د حضرت ابوبکر صديق او حضرت علي رضی الله تعالی عنهما د مقام او منزلت لوړوالی او د پيغمبرﷺ په هجرت کې د دوی رول.

۴. د پيغمبرﷺ په وړاندې د ابو جهل او د هغه د ملګرو بدي.

۵. د الله تعالی لخوا د خپل پيغمبر حفاظت او ساتنه.

**فعالیت:** نورې هغه ګټې چې له لوست څخه تر لاسه کېږي، بیان کړئ.

## ارزونه

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابووایاست:

۱. د دې لوست عمده ټکي په ګوته کړئ.

۲. نبي کریمﷺ په کوم تاریخ خپل کور پرېښود؟

۳. ولې نبي کریم ﷺ د خپل هجرت مسیر د ثور د غار په لوري و ټاکه؟

۴. د مکې د مشرانو په جلسه کې کومې خبرې وشوې؟

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

(          ) هغه شپون و چې نبي کریمﷺ او ابو بکر صدیقرضي الله عنه د ثور په غار کې د هغه له پسونو څخه ګټه پورته کوله.

ابلیس د پیغمبر صلی الله د وژلو په اړه د (          ) نظر تایید کړ.

پیغمبرﷺ د (          ) نېټه د مدینې منورې په لور د هجرت په نیت له خپل کور څخه ووت.

مدینې منورې ته د پیغمبرﷺ او ابوبکر صدیقرضي الله عنه د هجرت د لارې لارښوونه(          ) په غاړه درلوده.

## کورنۍ دنده

پورتنی لوست په لنډه توګه په خپلو تعبیرونو سره په خپلو کتابچو کې و لیکئ!

د لاندې اشخاصو نومونه په صحیح او مکمله توګه پنځه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

(          صدیق)، (          بن فهیره)، (          بن اریقط)، (          بن مالک)

د لاندینیو کسانو په اړه یوه یوه مناسبه جمله ولیکئ!

ابوبکر صدیقرضي الله عنه، حضرت عليرضي الله عنه، سراقه بن مالک، عامر بن فهیره، عبد الله بن اریقط، ابـــو جهل او ابلیس.

# مدينې منورې ته د نبي كريمﷺ رسېدل

## د مدينې منورې لومړي كلي (قباء) ته د نبي كريمﷺ رسېدل

كله چې د مدينې منورې مسلمانانو د نبي كريمﷺ د هجرت او له مكې مكرمې څخه د هغه نبي كريمﷺ د وتلو خبر واورېد، نو هره ورځ به دښتو ته وتل او د نبي كريم ﷺ د راتګ له پاره به سترګې په لاره وو، د نيمې ورځې له ګرمۍ څخه وروسته به بېرته خپلو كورونو ته ستنېدل، بالآخره د دوشنبې په ورځ چې د ربيع الاول د مياشتې اتمه نېټه او د بعثت څوارلسم كال و، له انتظار وروسته بېرته خپلو كورونو ته راوګرځېدل، نو پدې وخت كې يو تن يهودي چې د خرما په ونه كې و، ناڅاپه يې سترګې په نبي كريمﷺ او د ده په خواږه ملګري ابوبكر صديق رضي الله عنه ولګېدې، په ناڅاپي توګه يې په لوړ اواز وويل: اى د عربو ډوليه! دغه دى ستاسې هغه لاربنود چې تاسو يې د راتګ انتظار كوئ او ليدلو ته يې تږي او لېواله ياستئ.

مسلمانان چې د نبي كريمﷺ په رارسېدلو ډېر خوشحاله شول، د تكبير په ويلو سره د نبي كريمﷺ مخې ته ورغلل او د پېغمبرﷺ په صفت سره يې هغه ته هركلى ووايه.

### قباء

قباء د مدينې منورې لومړۍ هغه كلى دى چې د مدينې منورې جنوب لور ته د مكې مكرمې په لار كې پروت دى، كله چې نبي كريمﷺ قباء ته ورسېد، نو لومړۍ هغه څوک چې د نبي كريمﷺ د مېلمستيا شرف يې په برخه شو، كلثوم بن هدم وه.

رسول اللهﷺ په قباء كې د خپل څلور ورځني اقامت په ترځ كې تر ټولو مخكې د قباء په نوم د هغه مسجد بنسټ كېښود چې په قرآن كريم كې ورڅخه د تقوى د مسجد په نامه يادونه شوې ده او په هغه كې يې لمونځ ادا كول پيل كړل.



## د حضرت علي رضي الله عنه رسېدل

حضرت علي رضی الله تعالی عنه چې کله له پېغمبر صلی الله علیه وسلم د لاربنونو سره سم د خلکو امانتونه دوی ته وسپارل، نو د مدینې منورې په لور یې حرکت وکړ او پېغمبر صلی الله علیه وسلم په قباء کې و چې حضرت علي رضي الله عنه وروړسېد.

## له قباء څخه د مدینې منورې په لور

په مدینې منورې
کې ساکن قبایل

د بني نجار خلک چې د ده له صلی الله علیه وسلم په پنځمه ورځ (چې د جمعې مبارکه ورځ وه) نبي کریم سره یې صلی الله علیه وسلم ماماګانو څخه وو، راوبلل، هغوی هم د خپل اخلاص له مخې چې له نبي کریم د بني صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول، نبي کریم صلی الله علیه وسلم درلود، ټول له خپلو تورو سره د نبي کریم نجار د خلکو په ملګرتیا د مدینې منورې مرکز ته حرکت وکړ او د جمعې مبارکې ورځې د لمانځه د وخت په رارسېدلو سره یې د بني سالم بن عوف په منطقه کې د جمعې لمونځ ادا کړ.




**مديني منورې ته داخلېدل:** په همدغه ورځ د جمعې د لمانځه له ادا کولو څخه وروسته پيغمبراکرمﷺ د يثرب ښارګوټي ته ننوت چې لدې ورځې وروسته په مدينة الرسول او يا مدينه منوره سره ونومول شو، (مدينه په عربي ژبه کې د ښار په معنا ده، يعني د پيغمبرﷺ ښار او يا نوراني ښار). مديني ته د نبي کريمﷺ په رسېدلو د مديني منورې د کليو خلک ډېر زيات خوښ او خوشحاله شول، خلکو خپله خوشحالي په مختلفو ډولونو ښکاره کوله، د انصارو وړو او کوچنيو نجونو په ډېره خوښۍ او خوشحالۍ سره دغه بيتونه د هرکلي د ترانې په توګه پيغمبرﷺ ته وړاندې کول:

| | |
|---|---|
| طلع البـــــدرعلينا | من ثنيات الــــودا ع |
| وجب الشكر علينا | مــــا دعـــا لله داع |
| ايهـــا المبعوث فينا | جئت بالامر المطاع |

## ژباړه

د وداع (په مدينه منوره کې د يو کلي نوم دی) له څوکو نه پر مـــوږ بانـــدې د څوارلـــسمې سپوږمۍ راوختله

پر موږ باندې شکر واجب دی تر هغې چې د اللهﷻ لوري ته يو دعوتګر دعوت (بلنه) کوي.

ای موږ ته راتلونکيه! تا له ځان سره داسې حکم راوړی دی چې منل او اطاعت يې فرض دی.

## د انصارو د خلکو هیلې

سره لدې چې د انصارو خلک شتمن او بډای نه وو، خو د هغه ایماني احساس له مخې چې دوی درلود هر یوه یې غوښتل چې نبي کریمﷺ د هغه کور ته تشریف یوسي، د نبي کریمﷺ د اوښ پړی به یې نیولو او ویل به یې: پر ما احسان وکړه، زه په خدمت کې یم، خو رسول اکرمﷺ فرمایل: د اوښ لاره خوشې کړئ! هغه خپل ځای پېژني. تر هغه چې اوښه د ابو ایوب انصاري د کور مخې ته ګونډه شوه او پیغمبرﷺ ورڅخه راښکته شو او له هغه څخه وروسته یې د ابو ایوب انصاري په کور کې استوګنه غوره کړه.

## په مدینه منوره کې د نبوي مسجد جوړول



په مدینه منوره کې تر ټولو لومړی کار چې نبي کریمﷺ تر سره کړ، هغه د نبوي مسجد جوړول وو چې رسول اکرمﷺ په خپلو مبارکو لاسونو باندې په جوړولو کې یې کار وکړ.

## د لوست ګټې

۱. له پیغمبرﷺ د مدینې منورې د خلکو (انصارو) مینه او اخلاص.
۲. په اسلام کې د مسجد جوړولو ارزښت، ځکه تر ټولو لومړی کوم کار چې پیغمبرﷺ په مدینه منوره کې تر سره کړی، هغه د مسجد جوړول و.

۳. د مسلمانانو د مشرانو د هرکلي لپاره د خوښۍ څرګندولو او د هرکلي د ترانو د ويلو روا والی.

۴. د ابو ايوب انصاري مقام او منزلت.

**فعاليت:** لدې لوست څخه چې نورې کومې ګټې ترلاسه کېږي، بيان يې کړئ.

**ارزونه**

أ. لاندينيو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د لوست عمده ټکي بيان کړئ.

۲. پيغمبرﷺ او ملګرى يې په کومه نېټه قباء ته ورسېدل؟ او څو ورځې يې هلته تېرې کړې؟ او تر ټولو مخکې يې څه وکړل؟

۳. پيغمبرﷺ د کومو خلکو په ملګرتيا د مدينې منورې په لورې حرکت وکړ؟

۴. د يثرب نوم له کوم وخت څخه په مدينة الرسول تبديل شو؟

ب. لانديني خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. پيغمبرﷺ لومړى د جمعې لمونځ په (                    ) کې ادا کړ.

۲. په قباء کې د نبي کريمﷺ د اوسېدلو وخت (                    ) ورځې وو.

۳. پيغمبرﷺ په قباء کې د اوسېدلو په وخت (                    ) جوړ کړ.

**کورنۍ دنده**

د لوست ارزښتناک ټکي په يوه مقاله کې وليکئ!

پورتني لوست ته په کتو سره لاندينيو کسانو او قومونو څه رول لوبولی دی؟

يهودي سړي، کلثوم بن الهدم، علي بن ابي طالب، بني النجار، بنـــي ســـالم، د انصارو کوچينيو نجونو، ابو ايوب انصاري.

## د مسلمانانو تر منځ د وروګلوۍ تړون

پیغمبرﷺ د لومړي ځل لپاره د مهاجرینو او انصارو تر منځ د اسلامي وروګلوۍ تړون قایم کړ چې د هغې اړیکې له نسبي اړیکو څخه هم ډېرې کلکې او محکمې وې.

**د مهاجرینو او انصارو تر منځ وروړګلوي:** مدینې منورې ته د نبي کریمﷺ له رسېدلو وروسته د مهاجرینو او انصارو تر منځه د وروړګلوۍ د تړون اعلان وشو، پدې بنیاد د انس بن مالک په کور کې یې د نوي تنو صحابه کرامو تر منځ چې نیمایي یې انصار او نیمایي نور یې مهاجر وو د ورور ګلوۍ د تړون اعلان وکړ چې د هغې له امله به یې یو له بل څخه میراث هم وړلای شو، او دا کار د مسلمانانو یو بل ته د ډېرې پاملرنې لامل و ګرځېد.

**د مدینې منورې د اوسېدونکو سره د یووالي تړون:** لکه څنګه چې نبي کریمﷺ د مهاجرینو او انصارو تر منځ د وروړګلوۍ تړون غښتلی کړ، همدارنګه یې د انصارو تر منځه او په ځانګړې ډول د اوس او خزرج قبیلو تر منځ چې د ډېرو کلونو را پدېخوا یې له یو بل سره دښمني درلوده، د وروړګلوۍ تړون قایم کړ.

همدارنګه پیغمبرﷺ د مدینې منورې له ټولو اوسېدونکو یعنې له مسلمانانو، مشرکانو او یهودو سره د مرستې تړون لاسلیک کړ چې د هغې په وسیله د مدینې منورې اوسېدونکو ته دینـــي او اقتصادي ازادي ورکړل شوه، او د بهرني یرغل په وړاندې مکلف وو چې له یو بل سره مرسته وکړي.

### د لوست ګټې

۱. د مسلمانانو تر منځ د وروړګلوۍ د اړیکو ژوندي کول او په ځانګړې ډول په هغه وخت کې چې یوه ډله له دوی څخه مهاجر او بې کوره وي او بله ډله په ښه حالت کې قرار ولري.
۲. د ګډو مصالحو (ګټو) څخه د دفاع په منظور د مختلفو قومونو او طایفو سره د اړیکو د تړون تر سره کولو جواز.
۳. د مسلمانانو تر منځ او په ځانګړې توګه د هغو مسلمانانو تر منځ چې له یو بل سره دښمني ولري، د صلحې او وروړګلوۍ ټینګول.

**فعالیت:** لدې لوست څخه نورې کومې ګټې تر لاسه کېږي؟ بیان یې کړئ.

**ارزونه**

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د دې لوست عمده ټکي بیان کړئ!

۲. د مدینې منورې له اوسېدونکو سره د یووالي تړون څرنګه تر سره شو؟

**کورنۍ دنده**

پورتنی لوست په لنډه توګه په خپلو عبارتونو په کتابچو کې ولیکئ.

# له نورو قبیلو سره د رسول الله ﷺ تړونونه

کله چې رسول الله ﷺ په مدینه منوره کې د مسلمانانو تر منځ د ورورګلوۍ تړون ټینګ کړ، نو د اسلامي ټولنې د پیاوړتیا او د مدینې منورې د ساتنې په غرض یې مدینې منورې ته د نږدې سیمو له اوسېدونکو سره هم تړونونه لاسلیک کړل.

## د بني عوف له یهودو سره تړون

د مدینې منورې په شاوخوا کې د یهودو څینو قبیلو ژوند کاوه، دوی له مسلمانانو سره خپله دښمني پټه ساتله، خو نبي کریم ﷺ له دوی سره له احتیاط څخه کار اخیسته، لدې امله یې له دوی سره څینې تړونونه لاسلیک کړل چې مهم ټکي یې په لاندې توګه دي:

۱. د بني عوف یهود د مسلمانانو متحدین دي، یهود به په خپل دین او مسلمانان به په خپل دین اوسي.
۲. که د تړون په یوه لوري د پردیو له خوا تېری کېږي، د تړون په دواړو لورو لازم دی چې په اتفاق سره د یرغلګرو په وړاندې له یو بل سره مرسته وکړي.
۳. د تړون دواړه لوري به په خپل منځ کې د یو بل له پاره د خیر غوښتونکي وي.
۴. د تړون هېڅ یو لوری د بل لوري د جنایت مسوول ندی.
۵. د تړون دواړه لوري به د مظلوم مرسته کوونکي وي.
۶. د جنګ په وخت کې به د تړون هر لوری خپل مالي مصارف په خپله غاړه اخلي.
۷. د مدینې منورې سیمه د حرم (ممنوعه سیمې) حیثیت لري.
۸. که د تړون د دواړو لورو تر منځ کومه ستونزه پیدا کېږي. نو د الله تعالی او د هغه د پیغمبر ﷺ د لارښوونو مطابق به فیصله کېږي.

## د لوست ګټې

۱. مسلمانان باید کوښښ وکړي چې له خپلو ګاونډیانو سره نېکې اړیکې ولري.
۲. مسلمان باید دخپل ګاونډي لپاره د خیر غوښتونکی اوسي.
۳. مسلمان باید له مظلوم څخه دفاع وکړي.

۴. د اسلامي هېواد لپاره د ښه امنیت په موخه دا لازمه ده چې له ګاونډیانو سره یې د دوستۍ، او تفاهم تړونونه لاسلیک کړي.

۵. له محاربینو څخه د اسلامي خاورې د دفاع په منظور مسلمانانو ته روا دي چې له غیر مسلمانانو سره ائتلاف وکړي.

### ارزونه

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د بني عوف له یهودانو سره د پیغمبرﷺ د تړون مهم ټکي بیان کړئ.

۲. د لوست ګټې واضح کړئ.

### کورنۍ دنده

دغه لوست په خپل تعبیر سره په کتابچو کې ولیکئ.

# د مسلمانانو په ضد د قریشو د سیسې

د قریشو کافرانو، سره لدې چې مسلمانانو ته يې په مکه مکرمه کــې ډول ډول شــکنجې او ضررونه ورسول او مدینې منورې ته د هجرت په وخت کې یې هم دوی ته ضرر ورساوه، خو بیا یې هم له مسلمانانو سره له دښمنۍ څخه لاس وانخیست.

## عبد الله بن ابي بن سلول ته د قریشو د لیک لیږل

د مکې مشرکینو عبد الله بن ابی بن سلول ته (چې د مدینې منورې له مشرانو څخه و) لیــک واستاوه چې پکې راغلي وو:

تاسو زموږ دښمن ته ځای ورکړی دی، په الله ﷻ دې قسم وي چې یا خو به له ده سره جنګ کوئ او له مدینې څخه به یې وباسئ او یا دا چې زموږ د راتلو انتظار وباسئ، تر څو ستاســې جنګیالي مړه او عزت مو تر پښو لاندې کړو.

د پیغمبر ﷺ په وړاندې د عبد الله بن ابي د جنګ تیاری: کله چې دغه لیک د عبد الله او د هغه د ملګرو لاس ته ورغی، هغوی د پیغمبر ﷺ مقابلې ته را وړاندې شول، نبي کریم ﷺ د دوی له بدو نیتونو څخه خبر شو، پخپله یې د دوی غونډې ته تشریف یووړ، او دوی ته یې وویل: د عبد الله خبرې د مکې د کفارو د درواغجنو تبلیغاتو نتیجه ده. هغوی نشي کولای چې د مدینې اوسېدونکو ته زیان ورسوي، عبدالله ملګرو ته یې وویل: ایا تاسو غواړئ چې له خپلو اولادونو او خپلو وروڼو سره جنګ وکړئ؟

عبد الله بن ابي د پیغمبر ﷺ د خبرو په اورېدو سره له جنګ څخه لاس په سر شو او ولاړل.

## د لوست ګټې

١. مسلمانان په حکمت او نېکې موعظې سره کولای شي چې د ډېرو لويو ستونزو مخه ونیسي.
٢. مسلمانان باید کوښښ وکړي چې د داخلي اختلافاتو مخنیوی وکړي، په ځانګړي ډول په هغه وخت کې چې کله له خارجي دښمن سره مخ وي.

۳. له منافقینو سره مخامخ کېدل ډېر ځلې د مسلمانانو تر منځ د نفاق لامل ګرځي او په ځانګړي ډول په هغه وخت کې کله چې د مسلمانانو تر منځ قومي شعارونه موجود وي.

۴. د مسلمانانو لارښود باید په مناسب وخت کې د دښمن له دسیسو څخه ځان خبر کړي واوسي، څو مخکې له مخکې لاس په کار شي.

ارزونه

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د لوست عمده ټکي بیان کړئ.

۲. د دې لوست ګټې په ډاګه کړئ.

۳. عبد الله بن ابي بن سلول څوک و؟

کورنۍ دنده

د دې لوست په اړه یوه مقاله ولیکئ او مناسب عنوان ورته غوره کړئ.

د بدر غزوه د اسلام په تاریخ کې لومړنۍ سرنوشت ټاکونکې غزوه وه چې د رمضان المبارک په میاشت د هجرت په دویم کال په بدر نومي ځای کې (چې له مدینې منورې څخه په (۱۵۰) کیلو متره فاصله کې واقع دی) د مسلمانانو او مشرکینو تر منځ واقع شوه.

## د بدر د جنګ لاملونه

کله چې مسلمانانو له مکې مکرمې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ، نو د قریشو د مشرکینو له ویرې مدینې منورې ته د خپلو مالونو په وړلو ونه توانېدل، هماغه وو چې مالونه یې د مکــې د مشرکینو له لوري غصب شول، په همدې بنیاد چې کله مــسلمانان او پــه ځــانګړې ډول مهاجرین د ابو سفیان په مشرۍ د قریشو د تجارتي قافلې څخه خبر شول چې له شام څخــه د مکې په لور روانه ده، پدې هوډ شول چې د قافلې لاره ونیسي او د مسلمانانو غصب شــوي مالونه ورڅخه پدې ترتیب بېرته ترلاسه کړي، پیغمبرﷺ له درې سوه او دیارلسو (۳۱۳) تنو مسلمانانو سره له مدینې منورې څخه د ابوسفیان د قافلې د لارې نیولو په نیت راووت، کلــه چې دغه خبر ابو سفیان ته ورسېد، هغه سملاسي د مکې مشران د مسلمانانو له نیت څخه خبر کړل، او د خپلې قافلې د نجات له پاره یې د مرستې غوښتنه وکړه، د مکې مشرکینو د خپلې قافلې د نجات له پاره سملاسي له یو زر او درې سوه تنو لښکر سره د ابو سفیان د مرستې له پاره ورودانګل، خو ابوسفیان د خپلې ځیرکۍ په مرسته قافله په بله لار روانه کړه او مکې ته یې ورسوله.

قریش د مسلمانانو پدې حرکت ډېر سخت په غوسه شول او سره لدې چې مکې مکرمې تــه د قافلې له روغ رسېدلو څخه خبر شول، خو د مشرکینو د لښکر مشر ابو جهل له مــسلمانانو سره په جنګ کولو ډېر ټینګار وکړ، د مشرکانو د لښکر مشر ابوجهل، د خپل هغــه جــاهلي غرور له مخې چې یې درلود، قسم یاد کړ او ویې ویل: په اللهﷻ مې قسم چې بدر ته به ځــم، هلته به درې شپې او ورځې مېلې جوړوم، تر څو ټول عرب زموږ له قوت څخه خبر شــي او د تل له پاره له موږ څخه وویرېږي.

لدې امله د قریشو لښکر د بدر په لور حرکت وکړ، خو د بني زهره وو درې سوو تنــو لــه مسلمانانو سره له جنګ مخ واړاوه او د اخنس بن شریک په مشرۍ مکې ته واپس وګرځېدل.

## د مسلمانانو او د مکې د مشرکینو تیارۍ

د بدر په غزا کې د مسلمانانو شمېر ۳۱۳ تنه وو چې یوائې په دوو آسونو او ۷۰ اوښانو سمبال وو. د مکې د مشرکینو شمېر د بدر په غزا کې ۱۰۰۰ تنه وو چې د دوی له جملې څخه ۷۰۰ تنو جنگي زغري درلودې او ۱۰۰ تنه یې په آسونو سپاره وو، د اوښانو شمېر یې هم ډېر زیات و چې د نقلي لوازمو د نقلولو په وخت کې یې ورڅخه کار اخیست او له غوښو څخه یې هم گټه اخیسته.

## له مجاهدینو سره د رسول الله ﷺ مشوره کول

نبي کریم ﷺ د مسلمانانو مشورتي غونډه جوړه کړه، ابو بکر، عمر، مقداد بن عمرو او سعد بن معاذ رضي الله تعالی عنهم هر یوه په خپل نوبت سره خپل نظرونه څرگند کړل، پدې تصمیم و نیول شو چې د قریشو د لوی لښکر په وړاندې باید مقاومت وشي او د جنگ له پاره بایــد تیاری ونیول شي، خباب بن منذر رضي الله عنه د مسلمانانو د جنگ د قرارگاه په اړه خپل نظر وړاندې کړ چې باید د بدر اوبو ته نږدې و اوسي، پیغمبر ﷺ د ده نظر تایید کړ، هغه ځای یې خــوښ کړ چې د بدر اوبو ته نږدې و او همدارنگه یې نوې ځاگانې واېستې، تر څو د څښاک پرېمانه اوبه ولري.

## له الله تعالی څخه دعا غوښتل

سهار مهال کله چې دواړه لښکرې سره مخامخ شوې، رسول الله ﷺ د مجاهدینو صفونه برابر کړل جنگي مسئولینو ته یې خپلې وروستۍ لارښوونې وکړې، لاس په دعا شو او ویې ویل: ای الله جل جلاله! د مرستې هغه وعده دې چې له ما سره کړې وه، نن ورځ هغه پوره کړه، ای الله جل جلاله! که نن ورځ د مسلمانانو دغه ټولی هلاک شي، نو دځمکې پر مخ به ستا عبادت ونه شي.

## تن په تن جنګ (مبارزه)




په پيل کې د معمول په څېر د قريشو درې تنه تر ټولو ښه تکړه جنګ کوونکي عتبه او شـــيبه د ربيعه زامن او وليد د عتبه زوی چې ټول له يوې کورنۍ څخه وو، د جنـــګ ميـــدان تـــه را وړاندې شول او د مبارزې لپاره يې له دښمن غوښتنه وکړه، له انصارو څخه درې تنه عـــوف، معوذ چې د حارث زامن وو او عبد الله بن رواحه د دوی مخې ته ور وړاندې شـــول، خـــو د قريشو جنګ کوونکو له دوی سره د جنګ کولو څخه انکار وکړ او د خپلو ترونو د زامنـــو غوښتونکي وو.

پيغمبرﷺ عبيده بن حارث، حمزه او علي رضي الله تعالى عنهم تـــه د وتلـــو حکـــم وکـــړ. حمزهرضي الله عنه خپل دښمن شيبه او عليرضي الله عنه هم خپل دښمن وليـــد ډېـــر ژر وواژه، يـــواځې عبيدهرضي الله عنه چې د پاخه عمر خاوند و، خپل دښمن ته يې وخت ورکړ، کله چې حمزه او علي (رضي الله تعالى عنهما) د خپلو دښمنانو له وژلو څخه وزګار شول، ټولو په ګډه سره هغه هـــم وواژه.

## ډله ييز يرغل

د دغو دريو تنو په وژل کېدو سره د مشرکينو غوسه زياته شوه، له کينې څخه په ډکو زړونو يې پر مسلمانانو باندې په ډله ييزه توګه يرغل وکړ، مسلمانانو چې له الله تعالى څخه يې يـــواځينى غوښتنه د دښمن پر وړاندې ثبات او استقامت و، د کفارو يرغلونه يې يو پر بل پسې پـــه شـــا وتمبول او په ښه توګه يې له خپل ځان څخه دفاع وکړه. پداسې حال کې چې د (اَحَد، اَحَـــد) کلمه يې پر ژبو جاري وه، دښمن ته يې ملا ماتوونکې ګوزارونه ورکړل.

**د ابو جهل وژل کېدل:** د مشرکانو د لښکر مشر ابو جهل په خپلو لښکرو کې د ماتې د نښو له ليدلو وروسته کوښښ وکړ چې د اسلامي لښکر په وړاندې د هغوى روحيات د دويم ځل له پاره را ژوندي کړي او هر لوري ته به يې منډې وهلې. ناڅاپه دوو زلميو مجاهدينو د باز په څېر په ابو جهل حمله وکړه، د تورې د ګزار له امله يې ورون پرې شو او له آس څخه را پرېوت او د پرله پسې ګوزارونو له امله له حرکت څخه ولوېده.

**د مشرکينو ماتې او د دوى تېښته:** کله چې د مشرکينو په لښکرو ماته ګډه شوه او د مجاهدينو د سختو حملو له امله د دوى جنګي نظام په بشپړه توګه ګډ وډ شو، نو مشرکينو د تېښتې لاره غوره کړه، سره لدې چې دوى د جنګ ميدان په ډېر بد حالت کې پرېښود خو بيا هم د مجاهدينو له لوري تر ډېرو لرې ځايونو پورې تعقيب شول.

**د جنګ نتيجه:** پدې تاريخي غزا کې چې د مشرکينو په ريښتونې ماتې او د مسلمانانو په ريښتوني برياليتوب پاى ته ورسېده، (۱۴) تنه مسلمانان په شهادت ورسېدل او د مشرکينو له لوري اويا (۷۰) تنه چې ډېر يې د قريشو مشران وو، ووژل شول او اويا (۷۰) تنه نور يې د بنديانو په توګه ونيول شول چې بيا وروسته په مختلفو لارو ازاد شول، تر دې چې ځينې يې لسو تنو زده کوونکو ته د زده کړې په بدله کې ازاد شول.



## د لوست ګټې

۱. د دښمن کاروان ته لار نیول شوني ده چې په لوی جنګ تبدیل شي، نو لازمه ده چې له یوه لوري د هغه له پاره د جواز دلیل پیدا شي او له بل لوري د جګړې د خطرناکو پایلو له پاره پوره تیارى ونیول شي.
۲. له خپلو ملګرو او په ځانګړي ډول له مخلصو او متخصصو ملګرو سره مشوره کول ښې پایلې لري.
۳. بریالیتوب ته د رسېدو په منظور له ټولو روا امکاناتو څخه ګټه اخیستل.
۴. الله تعالې ته دعاء او له هغه څخه د مرستې غوښتل.
۵. غرور، کبر او ځان غوښتنه ناوړه پایلې لري.
۶. څرنګه چې مسلمان له مرګ څخه وروسته په بیا ژوند ایمان لري، نو له دښمن سره پـــه مقابله کې نه وارخطا کېږي او په لوړه روحیه او حواسو باندې د پوره حاکمیت له لارې خپـــل حرکات په ښه توګه کنټرولوي چې دا ټکی یې د بریالیتوب مهم لامل ګڼل کېږي.
۷. جنګي بندیان باید ونه وژل شي او په ځانګړې توګه هغوی چې جنګي مجرمان نه وي.
۸. د علم زده کړه په اسلام کې ډېر ارزښت لري.

**فعالیت:** له لوست څخه کومې ګټې تر لاسه کېږي؟ بیان یې کړئ.

### ارزونه

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د بدر د غزا علت څه و؟
۲. د بدر په غزا کې د مسلمانانو او مشرکانو شمېر او تجهیزات څومره وو؟
۳. د بدر د غزا نتیجه څه وه؟
۴. د بدر غزا په کوم کال او کومه سیمه کې واقع شوه؟

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ.

۱. (            ) خپل حریف شیبه او (            ) خپل حریف ولید ډېر ژر ووژل.
۲. (            ) چې د پاخه عمر خاوند و، خپل حریف ته یې وخت ورکړ څو (            ).
۳. (            ) وتوانېدو چې د قافلې مسیر ته تغیر ورکړي اومکې ته یې روغه ورسوي.

## کورنۍ دنده

۱. د بدر د غزا مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ!
۲. پدې لوست کې د لاندینیو کسانو رول ته په کتلو سره د دوی په اړه مناسبې جملې ولیکئ:

حمزه بن عبد المطلب، علي بن ابي طالب، عبیدة بن الحارث، شیبه بن ربیعـــة، عتبه بن ربیعة، ولید بن عتبة، ابوجهل، ابو سفیان، اخنس بن شریک، حباب بن منذر.

# د احد غزا

د احد غزا د احد په سيمه کې چې د مدينې منورې شمال لوري ته موقعيت لري، د هجرت په دريم کال د شوال په ۷ مه نېټه پېښه شوه.



**د احد د غزا سبب**

په بدر کې د مکې د مشرکينو ماتې او د قريشو د مشرانو او نومياليو جنګياليو وژنې ټوله مکه د غم او غوسې په ټغر کېنوله، د دوی د انتقام او بدلې اخيستلو جذبه دومره تېزه وه چې په مړو باندې ژړا يې هم په خپلو ځانونو باندې حرامه کړې وه، څو له مسلمانانو څخه خپل انتقام او غچ واخلي. نو له مسلمانانو څخه يې د انتقام اخيستلو په منظور د احد د جنګ طرحه وړاندې کړه.

## د بدلې اخيستلو له پاره د قريشو تيارى

پدې اساس قريشو په يوه اتفاق له مسلمانانو سره د يو پرېکنده جنګ له پاره په تيارۍ نيولو پيل وکړ، د هغې قافلې ټول مالونه يې چې د بدر د غميزې پېښې لامل شوي وو، پـــدې لاره کـــې وقف کړل، د راتلونکي کال په رارسېدلو سره د مکې خلک له دريو زرو ۳۰۰۰ وسله والـــو جنګياليو سره چې درې زره ۳۰۰۰ اوښان، اووه سوه ۷۰۰ جنګي زغرې، دوه ســـوه ۲۰۰ آسونه او د جنګيالو د احساساتو د ښو پارولو له پاره يو شمېر ښځې ورســـره ملګـــرې وې، د مدينې منورې په لوري روان شول.

## په مدینه منوره کې د شورى جوړېدل

د مشرکینو لښکر د حرکت د خبر له رسېدو سره سم، رسول الله ﷺ له خپلو ملګرو سره مشورتي غونډه جوړه کړه، څو د مشرکینو په وړاندې خپل تیاری ونیسي، د پیغمبر ﷺ شخصي نظر دا و چې باید د مدینې منورې په داخل کې له مشرکینو سره جګړه وشي، د منافقینو رئیس عبد الله بن ابي بن سلول هم لدې نظر سره خپله موافقه اعلان کړه.

ځینې صحابه کرامو، لکه حضرت حمزه رضي الله عنه، له مدینې منورې څخه وتل وغوښتل، نو هماغه وو چې د مسلمانانو د ډېر ټینګار په نتیجه کې رسول الله ﷺ دا تصمیم ونیوه چې له کفارو سره د مقابلې له پاره له مدینې منورې څخه بهر ولاړ شي.

## له جنګ څخه د عبد الله بن ابی را ګرځېدل

عبد الله بن ابي چې اصلي موخه یې د مجاهدینو د مورال ټیټول او دښمن ته جرات ورکول وو، له خپلو درې سوو تنو ملګرو سره بېرته مدینې منورې ته راستون شو.

## د مسلمانانو د صفونو تنظیمول

کله چې رسول الله ﷺ له خپلو ملګرو سره د احد غره ته ورسېد، پنځوسو تنو ښو تجربه کارو غشو وېشتونکو ته یې د عبد الله بن جبیر په مشرۍ دنده وسپارله، څو د هغې غونډۍ په سر چې وروسته په جبل رمات ونومول شوه، سنګر ونیسي چې له یوې خوا دښمن پر غشو ولي او له بلې خوا به دښمن دې ته نه پرېږدي چې په ناڅاپي ډول په مسلمانانو د شا له خوا حمله وکړي، پیغمبر ﷺ دوی ته ډېر ټینګار وکړ چې د پیغمبر ﷺ له امر پرته به په هېڅ ډول خپل ځای ته تغیر نه ورکوي، تردې چې که جنګ پای ته هم ورسېږي او مشرکین وتښتي.

## د جنګ پیل

دواړه لوري د یو بل په وړاندې ودرېدل، طلحة بن ابي طلحة عبدري د مکې د مشرکینو له لوري پداسې حال کې چې په اوښ سپور و، د جنګ میدان ته را وړاندې شو او د مقابلې له پاره یې د حریف غوښتنه وکړه، زبیر بن العوام رضي الله عنه یې د مقابلې له پاره ور وړاندې شو او له مهلت ورکولو پرته یې په هغه باندې د زمري په څېر حمله وکړه او د سر په پرې کولو سره یې هغه په ځمکه وپرځاوه، د دې صحنې په لیدلو سره رسول الله ﷺ په لوړ اواز د تکبیر نعره کړه چې ټولو صحابه کرامو ورسره د تکبیر اوازونه پورته کړل.

له دې وروسته جنګ په ډېرې تېزۍ سره پیل شو، د مشرکینو د بیرغ اخیستونکي یو پر بل پسې ووژل شول.

## د مسلمانانو ځانونه قربانول

مسلمانانو د جنګ میدان په بشپړه توګه تر خپل کنټرول لاندې درلود، د خپلو جنګي کارنامو او لوړ همت په ښکارولو سره يې مشرکانو ته ماتې ورکړه او تېښتې ته يې اړ کړل.

## د ځینو غشو ويشتونکو تېروتنه



پدې نازکو او حساسو شېبو کې چې د مسلمانانو وړوکی ټولی د مشرکينو پر لوی لښکر باندې د بریالیتوب په حال کې و، د مسلمانانو ځینو غشو ويشتونکو لویه تېروتنه وکړه، هغوی د غنیمتونو د ټولولو په هیله او پدې ګومان چې ګواکې جنګ پای ته ورسېد او مشرکين وتښتېدل، د رسول الله ﷺ له امر پرته يې خپل ځای پرېښود، لاندې راکوز شول او د غنیمتونو په ټولولو مشغول شول.

## پر مسلمانانو باندې د مشرکینو دويم ځل حمله

پدې حساسو شېبو کې په ناڅاپي توګه د مشرکینو څخه يوې ډلې چې په آسونو سپاره وو، په مسلمانانو د شا له خوا حمله وکړه، لومړی يې عبدالله بن جبير او د ده نهه تنه ملګري چې له ده سره په جبل رمات کې پاتې وو، په شهادت ورسول او لدې څخه وروسته يې مسلمانان له هرې خوا په ناڅاپي توګه محاصره کړل او حمله يې پرې وکړه چې پدې وخت کې جنګ د

مشرکینو په ګته تغیر وموند، د مسلمانانو لښکر غیر منظم او تیت شو، تر دې چې تر منځ یې د رسول الله ﷺ د وژل کېدو بده اوازه هم خپره شوه، خو رسول الله ﷺ خپل اواز لوړ کړ او مسلمانان یې خپلې شا او خوا ته راټول کړل چې په نتیجه کې د دښمن حمله په شا وتمبول شوه. مشرکینو نه یوائې دا چې دویم ځل حمله یې ونه کړه، بلکې ونه توانېدل چې د جنګ له میدان څخه یو څه شی له خپلو ځانونو سره واخلي او بیا خپلې قرارګاه ته له رسېدلو څخه وروسته یې د مکې لاره ونیوله.



## د حمراء الاسد د غزا له پاره تیاری

د احد په غزا کې د مسلمانانو ۷۰ تنه شهیدان شول چې حضرت حمزه او حضرت مصعب بن عمیر رضي الله تعالی عنهما هم پکې وو او پیغمبر ﷺ هم زخمي شو، مشرکینو د مسلمانانو د شهیدانو بدنونه مثله (د بدن اندامونه یې غوڅ) کړل او د مکې د مشرکینو ۳۷ تنه په هلاکت ورسېدل.

## د لوست ګټې

١. مسلمانان باید د خپل لارښود د اوامرو اطاعت وکړي او هېڅکله د لارښود له اوامرو څخه سرغړونه ونه کړي، (البته په معصیت او ګناه کې اطاعت لازم ندی).

۲. د مسلمانانو رهبر او لارښود باید په مهمو او ارزښتناکو مسائلو کې د نظر له خاوندانو ســـره مشوره وکړي.

۳. له خپل هېواد او خپلو خلکو څخه د دفاع په منظور لازم تدبیرونه نیول او له ټولو امکانـــاتو او روا وسائلو څخه ګټه اخیستل.

۴. د یوې کوچنۍ ډلې تېروتنه کله نا کله د یوه لوی ټولي له پاره د دردناکې پېښې لامل ګرځي.

## ارزونه

أ. لاندینیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱. د غشي ویشتونکو تېروتنه په څه کې وه؟ واضح یې کړئ.

۲. د احد د غزا سبب څه و؟ واضح یې کړئ.

۳. . د احد په غزا کې د مسلمانانو او مشرکینو د لښکرو شمېر څومره و؟

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. (            ) چې اصلي موخه یې د مسلمانانو د روحیې ضعیفول وو،له درې سوو تنو سره د مسلمانانو له ټولي څخه ووت او مدینې منورې ته واپس وګرځېد.

۲. (            ) د طلحة بن ابي طلحة مقابلې ته ور وړاندې شو.

۳. پیغمبر ﷺ پنځوس کسیزه ډله د (          ) په مشرۍ د جبل رمات په سر وټاکله.

## کورنۍ دنده

۱. د احد د غزا مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

۲. د احد په غزا کې د لاندینیو اشخاصو رول ته په کتلو سره د دوی په اړه یوه یوه مناسبه جمله ولیکئ:

زبیر بن العوام،          طلحه بن ابي طلحه عبدري،          حمزه بن عبد المطلب،

عبدالله بن ابي بن سلول،          او ابو سفیان.

## د سلام فضیلت

عَن أبي هريرة قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّهِ ﷺ: « لَاتَدخُلُوا الجَنَّةَ حَتّى تُؤمِنُوا وَ لَا تُؤمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا اَوَلَااَدُلُّكُم عَلَى شَيءٍ اِذَا فَعَلتُمُوهُ تَحَابَبتُم؟ اَفشُوا السَّلَامَ بَينَكُم » رواه مسلم

### د رواي پېژندنه:

د دې حدېث رواي په اول لوست کې پېژندل شوی دی.

### د کلمو معنا

۱. تُؤمِنُوا: ترڅو چې کامل مؤمنان شئ.
۲. تَحَابُّوا: چې یو بل سره مینه وکړئ.
۳. اِذَا فَعَلتُمُوهُ: کله چې تاسې هغه انجام کړ.
۴. اَفشُوا: خور کړئ.

### د حدیث شریف معنا

د ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي:
تر هغې به جنت ته داخل نه شئ تر څو پوره مؤمنان نه شئ او تر هغې پورې به د کامل ایمـــان خاوندان نه شئ، ترڅو چې يو له بل سره د زړه له کومې دوستان نه شئ، ايا تاسي ته داسې يو کار درونه ښايم که چېري مو انجام کړ، نو په خپلو کې به مو مينه زياته شي؟ په خپلو کې يو پر بل سلام اچوئ !

### د حدیث شریف حکمت

اسلام د سولې دوستۍ او صميميت دين دی، نو اړينه ده چې مسلمانان د خپلو کړنو او وييناوو په ذريعه دا صفات په ځان کې ثابت کړي، نو له همدې امله کله چې يو مسلمان له بل مسلمان سره مخ کېږي، اولني الفاظ چې د دوی له خولې نه تر هر څه مخکې بايد راووځـــي، هغــه د سلام (السلام عليکم...) الفاظ دي.
نو څوک چې پر چا پدې الفاظو (السلام عليکم) سلام واچوي، برسېره پر دې چې هغه ته يـــې د خير دعاء وغوښته او د هغه د سلامتيا غوښتونکی شو، هغه ته يې دا پيغام هم ورلندې کړ چې زما له طرفه پوره مطمئن شه، هيڅ کوم شر به زما له پلوه تا ته ونه رسېږي، همدارنګه زما لـــه پلوه به ستا سر، مال او ابرو ته هيڅ کوم شر ونه رسېږي، د سلام په ويلو سره انسان مقابـــل

جانب ته خپله دوستي ښکاره کوي او د هغه زړه ته اطمئنان ورکوي، نو بالاخره په پایله کې یوه له دوستی، صمیمیت او محبت څخه ډکه فضا او ټولنه رامنځ ته کېږي.

د الله جل جلاله پیغمبر د سلام اچول د تل پاتې دوستۍ لامل بللی دی او موږ یې د سلام اچولو ته تشویق کړي یو.

**فعالیت:** په ډله ییزه او یا انفرادي توګه د سلام اچولو ګټې وښایئ.

## د حدیث شریف ګټې

۱. د سلام په اچولو سره انسان د پوره ایمان خاوند ګرځي: ځکه چې پیغمبر ﷺ د پوره ایمان درلودلو لامل د مسلمانانو ترمنځ دوستي ښودلي ده او د دوستۍ پیدا کیدلو لامل یې د سلام اچول ښودلي، نو پر دې بنا د سلام په اچولو سره انسان د پوره ایمان خاوند ګرځي.

۲. جنت ته د ننوتلو شرط د ایمان درلودل دي: ځکه چې جنت د مؤمنانو لپاره دی، خو له ایمان سره باید نیک عمل هم ملګری وي، نه بد اعمال.

۳. یو له بل سره دوستي ساتل د پوره ایمان له نښانو څخه دي.

۴. د سلام اچولو کلتور (دود) باید د مسلمانانو ترمنځ ژوندی وساتل شي: نو اړینه ده چې خپل ماشومان د سلام په اچولو سره عادت کړو او دا وروښایو چې پر بل څرنګه سلام اچول کېږي او هم د سلام جواب په څه ډول سره ورکول کېږي.

### ارزونه

۱. د لاندې حدیث نیمګړې جملې پوره کړئ:

لاَ تَدخلُوا الجَنَةَ حتَّى.............وَ لاَ تؤمنُوا حتى..................

وَلاَ اَدُلُكُم على شيءٍ اذا................تَحابَبتُم ؟..................السلام بَينَكُم.

۲. د لوست حدیث وواياست او معنا يې کړئ.

۳. د حدیث د راوي په باره کې معلومات ولیکئ.

۴. د حدیث حکمت وښایاست.

۵. له حدیث څخه لاس ته راوړل شوي ګټې ذکر کړئ.

### کورنۍ دنده

د لاندې ذکر شوي حدیث عبارت له معنا سره په یادو زده کړئ.

« اَوَلَاَدُلُّكُم عَلَى شَىءٍ اِذَا فَعَلتُمُوهُ تَحَابَبتُم؟ اَفشُوا السَّلَامَ بَينَكُم ».

## د وخت او سلامتيا (صحت) ارزښت

عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال النبیﷺ: «نِعمَتَانِ مَغبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ الصِّحَةُ وَ الفِرَاغُ» رواه البخاري و الترمذي.

### د راوي پېژندنه:

عبد الله بن عباس بن عبد المطلب د پیغمبرﷺ د تره ځوئ و او په وړوکوالي کې د اسلام په دين مشرف شوی و، د اللهﷻ رسول ورته دعاء کړی وه، د صحابه وو تر منځ تر ټولو ښه فقيه او د تفسير په علم پوهه وه، او له پيغمبرﷺ څخه يې تر دوو زرو زيات احاديث روايت کړي دي او د هجرت په درې شپيتم کال په طايف کې وفات او خاورو ته وسپارل شو.

### د کلمو معنا

١. نِعمَتَان: دوه نعمتونه.
٢. مَغبُونٌ: تاوان يې پکې ليدلی دی.
٣. الفرَاغُ: وزگارتيا.

### د حديث شريف معنا

له عبد الله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رســـول اللهﷺ فرمــايلي دي: دوه نعمتونه دي چې ډېرو خلکو په کې تاوان ليدلی او ورڅخه په غفلت کې واقع دي: هغه سلامتيا ( روغ صحت ) او وزگارتيا ده.

### د حديث شريف حکمت

تر ټولو ستره پانگه د انسان لپاره روغ صحت او فارغ وخت دی، ځکه چې ټول ارزښـــتونه د الله تعالی له توفيق څخه وروسته د همدې دوو نعمتونو پورې تړلي دي، لدې امله له دې دوو نعمتونـــو څخه گټه اخيستنه له ژوند څخه گټه اخيستل دي او ضايع کول يې د ژوند ضايع کول دي.

د انسان فکر هغه وخت ښه توليد کوي کله چې د هغه بدن سالم وي، يعنې سالم فکر پــه ســـالم بدن کې وي او د فکر د ښې ودې لپاره بايد پوره وخت د ځان سره ولري، خو ډېر خلــک د دې دوو نعمتونو په ارزښت نه پوهېږي او له دې څخه هم غافله دي چې عمر يې څومره په تيزۍ ســـره

تیریږي، نو پدې حدیث کې پیغمبر ﷺ موږ ته لارښوونه کوي ترڅو له دې دوو نعمتونو څخه ښــه ګټه واخلو او د الله ﷻ په عبادت او د دنیا او آخرت په جوړولو کې یې ولګوو.

**فعالیت:** په ډله ییزه توګه د وخت د ارزښت او ورڅخه د ګټې د پورته کولو په بــاره کــې خبرې وکړې.

## د حدیث شریف ګټې

۱. **سلامتیا او د وخت درلودل د الله ﷻ دوه ستر نعمتونه دي:** نو انسان باید د دې نعمتونو شکر ادا کړي او ورڅخه ښه ګټه واخلي.

۲. **د بدن سالم ساتلو ته پاملرنه:** ځکه چې د ځان ساتل د علاج څخه غوره دي، انسان باید د صحت په سالم ساتلو کې بې غوري ونه کړي، دا ځکه کله چې د انسان د بې غورۍ په صورت کې د هغه د بدن یو غړی کار پرېږدي او یا یې بدن په کومې ناوړه ناروغۍ اخته شي، نو په هغه وخت کې به پښیمانتیا هیڅ ګټه ونلري.

۳. **زیاتره خلک له دې دوو نعمتونو څخه په غفلت کې دي:** هغه وخت یې په ارزښت پوهیږي کله چې یې هر څه له لاسه وتلي وي.

۴. **د سلامتیا او ځوانۍ ارزښت پېژندل:** د انسان بریالیتوب پدې کې دی چې د سلامتیا او ځوانۍ ارزښت وپېژني.

### ارزونه

۱. د لاندې ذکر شوي حدیث شریف ناقصې جملې پوره کړې:

« نِعمَتَانِ.............. فِیهِمَا کَثِیرٌ مِنَ النَّاسِ............وَ.............. »

۲. د حدیث عبارت ووایئ، او معنا یې کړئ.

۳. کوم احکام چې له حدیث څخه لاس ته راځي، ویې ښایئ.

### کورنۍ دنده

۱. د لوست حدیث له معنا سره د ښوونکي په مشوره په ښایسته خط په یوه تخته ولیکــئ او لیکل شوی حدیث په خپله کوټه کې د دیوال پر مخ راوځړوئ.

۲. د حدیث په اړوند یوه لنډه مقاله ولیکئ او د لیکنې لپاره یو مناسب عنوان غوره کړې.

# د رشوت حراموالی

عَنْ عَبْدِ اللهِ بنِ عَمرِو بن العاص ﷺ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ((الرَّاشِي وَالْمُرْتَشِي فِي النَّارِ )).رواه الطبرانی في المعجم الكبير.

## د راوي پېژندنه:

دغه لوی او جلیل القدر صحابي، عبد الله بن عمروبن العاص رضي الله تعالی عنه دی، نسب يې له نبي کریمﷺ سره په کعب بن لؤی کې یو ځای کېږي.

دغه صحابي عالم د قرآن کریم قاري او د احادیثو د حافظانو له جملې څخه دی، زیات شمېر احادیث يې روایت کړي دي او د هجرت په (٦٥) کال وفات شو.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ١. الرَّاشِي: | رشوت ورکوونکی. |
| ٢. الْمُرْتَشِي: | رشوت اخیستونکی. |
| ٣. فِي النَّار: | په جهنم کې به وي. |

## د حدیث شریف معنا

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي:(رشوت ورکوونکی او رشوت اخیستونکی به دواړه په اور(جهنم) کې وي.

## د حدیث شریف حکمت

رشوت هغه ناولې او کرغېړنه پدیده ده چې د ټولنو ټول اساسي بنسټونه له منځه وړي، د انسانیت لمنه ټولوي، بې باوري، اداري او مالي فساد خپروي، عامه ګټې لوټ کوي، حق تلفي، ظلم او بې عدالتي منځ ته راوړي، نو ځکه باید د دغه شوم او ناروا کار سزا باید سخته وي.

**فعالیت:** د رشوت بېلګې او اضرار په ګروپي ډول بیان کړئ.

## د حدیث شریف گټې

۱. **د رشوت ورکوونکي سزا:** په ډېرى وختونو کې رشوت ورکوونکی د دې لپاره بـــډې ورکوي چې ناحقه پریکړه باید د ده په گټه وشي.دا چې بډې ورکوونکی له یو پلوه د ظلم لامل او له بل پلوه رشوت اخیستونکي ته د گناه او تیري زمینه برابروي، الله ﷻ ورته جهنم ته د داخلیدو سخته سزا ټاکلې ده.

۲. **د رشوت اخیستونکي سزا:** د اسلام په مقدس دین کې حاکمان او دواک خاوندان پـــه دې مکلف دي چې همیشه باید پر حق کلک ولاړ اوسي او د انسانانو ترمنځ د عدل، انصاف او د حق پریکړې وکړي او د هر نوعه فاسدو او ناحقه فیصلو څخه ډډه وکړي.که چېـــرې څوک بډې واخلي او پر حقایقو پرده واچوي، الله ﷻ به يې د جهنم اور ته د اخل کړي، دا ځکه چې دی له یوې خوا د حرام مال خوړونکی او هم له سمې لارې څخه د انحراف د گناه مرتکب شوی دی.

**فعالیت:** د رشوت او ډالۍ ترمنځ څه توپیر دی؟ په هکله یې په خپل منځ کې بحث وکړئ.

### ارزونه

۱. لاندې کلمې معنا کړئ:

الرَّاشِي:

اَلْمُرْتَشِي:

فِي النَّارِ:

۲. د رشوت اخیستونکي او رشوت ورکوونکي سزا بیان کړئ.

۳. د رشوت په فرد او ټولنه بدې اغېزې څه دي؟

### کورنۍ دنده

حدیث په یادو زده کړئ او هم د رشوت د زیانونو په باره کې لنډه مقاله ولیکئ!

# د حلال کسب طلب

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بن مسعود قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ :(طَلَبُ كَسْبِ الْحَلاَلِ فَرِيضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ).مسند الشهاب القضاعي

## د راوي پېژندنه

د دغه جليل القدر صحابي نوم عبدالله، د پلار نوم يې مسعود او د بنو هذيل قبيلې ته منسوب دی، شپږم شخص و چې د اسلام په مبارک دين مشرف شو، دوه ځله يې حبشې ته هجرت کړی دی او په دريم ځل يې له حبشې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ. له رسول الله ﷺ سره به تل يو ځای او ملګری و چې له دې امله د اصحابو ترمنځ په صاحب العصا، صاحب الوسادة او صاحب المطهرة[1] مشهور و. په ډېره خوږه لهجه به يې تل د قرآنکريم تلاوت کاوه، د علم او پوهې سمندر و، د علمي مقام ترڅنګ د حق د سنګر يو غښتلی مجاهد هم و، په بدر، احد، خندق او نورو ټولو غزاګانو کې يې برخه اخيستې ده، د هجرت په ۳۲ کال د حضرت عثمان رضي الله عنه له شهادت څخه وروسته يې د نيمګړې نړۍ څخه رحلت وکړ.

## د کلمو معنا

۱. طَلَبُ: لټول.

۲. كَسْبِ الْحَلاَلِ: حلال کار او عمل کول.

۳. فَرِيضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ: فرض دی پس له نورو فرضونو څخه، يعنې د اسلام له پنځو ارکانو، او يا له پنځه وخته لمونځونو څخه وروسته.

## د حديث شريف معنا

له عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: د حلال کسب لټون د نورو فرضونو پسې فرض عمل دی.

## د حديث شريف حکمت

هر انسان په ژوند کې خوراک، څښاک، پوښاک او داسې نورو شيانو ته اړتيا لري او د دې شيانو لاس ته راوړل په کسب اوکار پورې تړاو لري. د دې لپاره چې انسان هوسا ژوند وکړي

---

[1] – يعنې رسول اکرم ﷺ ته به يې امسا په لاس کې ورکوله، تکيه او بالښت به يې ورته اېښود، او مسواک به يې ورته په لاس کې ورکاوه.

او له فقر او احتياج څخه مصوون وي، له همدې امله پر هر کس د حلال کسب لټه لازمه ده ترڅو ددې لارې څخه حلاله روزي لاس ته راوړي، په خپله يې هم وخوري، نورو ته يې هم ورکړي او په عامه خيريه کارونوکې يې هم مصرف کړي.

**فعاليت:** زده کوونکې دې په نوبت سره د هغو پيغمبرانو نومونه واخلي چې لاندې کارونه يې کول: د هقانی، ترکاڼي، زغرې جوړول، چوپاني.

## د حديث شريف ګټې

١. **حلاله روزي ګټل عبادت دی:** اللهﷻ زمکه په راز راز نعمتونو پوښلې ده او هم يې د رزق لاس ته راوړلو سرچينې زياتې پيدا کړې دي ترڅو انسانان د خپل شتون او بقا لپاره ورڅخه استفاده وکړي البته دغو نعمتونو ته لاس رسي لپاره کار او کسب کولو او زحمت ګاللو ته اړتيا ده.

د حلال رزق لټه پر هر مسلمان فرض ده، د حلال رزق لټون عبادت او د پيغمبرانو سنت دی. پر هر مسلمان دا واجب دي چې د مشروع لارو څخه رزق وګټي تر څو د سوال او احتياج له ذلت څخه ځان وژغوري، بهتره او غوره روزي هغه ده چې د لاس په زيار وګټل شي، د اللهﷻ غوره پيغمبر داوود (ع) به په خپل لاس ګټلې روزي خوړله.

٢. **د حلال کسب ارزښت:** د اسلام سپيڅلي دين انسانان کار او کسب ته هڅوي، کار اوکسب پر هر مسلمان واجب بولي. په شرعي نصوصو کې د ټولو کسبونو په هکله لکه: تجارت، زراعت، بزګري، صناعت، شپني او داسې نورو کسبونو فضيلتونه بيان شويدي.

د حلالې روزۍ د لاس ته راوړلو په خاطرکارکول د اللهﷻ په لارکې د جهاد برابر ثواب لري.

پيغمبرﷺ له يوکس سره مصافحه وکړه چې د هغه لاسونه د کار له امله زيږه وو پيغمبرﷺ وفرمايل:( دا هغه لاس دی چې اللهﷻ يي ډېر خوښوي).

د اسلام له نظره هغه څوک د ستاينې وړ دی چې کار او عمل کوی. يواځې کسب اوکار دی چې شخصي او ټولنيزې اړتياوې پوره کوي. د پياوړي اقتصاد سرچينه کسب او کار کول دي، کاسب او کارکوونکي ته خپله کورنۍ خپل خپلوان او ټول وګړي په درنده سترګه ګوري او د هرچا په وړاندې محترم وي.

۳. بې کارۍ او بد عواقب يې: بې کارۍ ياکار نه کول هغه بد خصلت دى چې هېڅ سالم عقل يې نشي زغملاى، کار نه کول په شريعت کې مردود خصلت دى د دې لپاره چې په جامعه کې بېکاري دفقر سبب ونه گرځـــي پيغمبـــرﷺ بېکـــاري پـــه کلکـــه غنـــدي اوفرمايي:(بيشکه اللهﷻ بېکاره ناست بنده بدگني).

حضرت عمرؓ هغه ځوانان چې د عبادت په بهانه مسجد کې بيکاره ناســـت وو، لـــه مسجده ووېستل او ورته يې وويل: (ووځئ هيڅکله له اسمان څخه په خپله سره او سپين زر نه راتوييږي).

هرڅوک چې کار او عمل پرېږدي او سستي وربانډې غالبه شي، پر کورنۍ او ټولنه بار او بـــوج وي، دوستان يې کم وي، څوک يې نه خوښوي، د هرچا په وړاندې ملامته وي، له مالي عباداتو او نورو سره له کومک کولو څخه بې برخې، او د ښيگڼې لاس يې تر هر چا زيات لنډ وي.

۴. د ځمکې تعمير او ابادي: اللهﷻ زمکه د انسان د ژوند زانگو او انسان يې د دې زمکې معمار پيداکړى دى. انسان د دې لپاره زمکې ته رالېږل شوى چې د زمکې مخ په ودانيو، کرلو، جوړولو... اباد او د ژوندانه لپاره يې برابر کړي ترڅو انسانان وکولاى شي په ارامه او اطمنان سره عبادت او د اللهﷻ بنده گي وکړي چې د زمکې تعمير او ابادي د انـــسان په بې ساري هلو ځلو پورې تړاو لري.

**فعاليت:** زموږ خوږ پيغمبر حضرت محمدﷺ له بعثت څخه مخکې کوم کوم کارونه کړي؟ ددوو نومونه واخلئ

## ارزونه

۱. د حديث شريف د راوي په هکله لنډ معلومات وړاندې کړئ.

۲. د حديث شريف اجمالي معنا وواياست.

۳. لاندې خالي ځايونه ډک کړئ:

:(طَلَبُ.............اَلْحَلَاَلِ............... بَعدَ................)

۴. د حديث شريف دوې گټې وليکئ.

## کورنۍ دنده

پورتنى لوست په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د الله ﷻ نعمتونه

عن ابن عباس رضي الله عنهما قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ، لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ:اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: شَبَابَكَ قَبْلَ هِرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ ).المستدرك للحاكم

## د راوي پېژندنه

د دې راوي پېژندنه په تیرو لوستونو کې تېره شوې ده.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱. يَعِظُهُ: | ورته یې نصیحت کاوه. |
| ۲. اغْتَنِمْ: | غنیمت وګڼه. |
| ۳. خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: | پنځه شیان مخکې له پنځو څخه. |
| ۴. شَبَابَكَ قَبْلَ هِرَمِكَ: | ځواني دې مخکې له کمزورتیا څخه. |
| ۵. وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ: | او خپله روغتیا مخکې له مریضتیا څخه. |
| ۶. وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ: | او خپل غني والی مخکې له فقرڅخه. |
| ۷. وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ: | او خپله وزګارتیا مخکې له بوختیا څخه. |
| ۸. وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ: | او خپل ژوند مخکې له خپل مرګ څخه. |

## د حدیث شریف معنا

د عبد الله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یوه کس ته نصیحت کاوه، ورته یې وویل: (پنځه شیان مخکې له پنځو څخه غنیمت وګڼه: خپله ځواني مخکې له خپلې کمزورتیا څخه غنیمت وګڼه، او خپله روغتیا مخکې له خپلې ناروغۍ څخه غنیمت وګڼه، او خپله بډایي او غنیوالی مخکې له خپل فقر څخه غنیمت وګڼه، خپله وزګارتیا مخکې له بوختیا څخه غنیمت وګڼه، او خپل ژوند مخکې له خپل مرګ څخه غنیمت وګڼه).

## د حدیث شریف حکمت

د کایناتو خالق الله ﷻ انسانانو ته ډول ډول ظاهري او باطني نعمتونه ورپه برخه کړي دي، لکه. روغ صحت، مال او دولت، ځواني، علم او پوهه او داسې نور، بناءً حتمي ده چې انسان د الله ﷻ د نعمتونو شکر ادا کړي او شکر یې هغه مهال پر ځای کېږي چې له ژوند او وخت څخه اعظمي استفاده واخیستل شي او په نیکو لارو چارو کې مصرف کړل شي ترڅو د نعمتونو د خالق او د هغه مخلوق د خوښۍ سبب وګرځي. پیغمبر ﷺ موږ ته په دې حدیث کې دغه نعمتونه او ورڅخه د ښې استفادې لارې چارې را په ګوته کوي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې په ګروپي شکل د الله ﷻ د نعمتونو نومونه واخلي.

## د حدیث شریف ګټې:

١. **ځواني د الله ﷻ لوی نعمت دی:** د انسان عمر له لحظو، دقیقو او میاشتو څخه عبارت دی او د ژوند هره لحظه چې تېرېږي، انسان مرګ ته ورنږدې کېږي. ځواني هغه نعمت دی چې په هکله به يې د قیامت په ورځ له بنده څخه پوښتنه کېږي. انسان په ځوانۍ کې له داسې نعمتونو څخه برخه مند وي چې د ځوانۍ په تیریدو سره یې بیا هېڅکله نشي تر لاسه کولای. په ځوانۍ کې بنده د کامل عقل، ښه ذهن، پیاوړي قوت او طاقت خښتن وي، هرڅه ډېر ژر یادوي، د کارونو په مقابل کې زیات تحمل او حوصله لري هر جسمي کار په ښه شان انجاموي، خو کله چې ضعیف او ځواني یې تېره شي، نو د بدن هډوکي یې نرم او کمزوري شي، بیا د ډېر څه کولو ارزو لري، خو ورڅخه عاجز او ناتوانه وي، که وغواړي چې ډېر ښه کارونه وکړي، خو د ضعیفوالي له امله یې نه شي کولای. د سالمې ټولنې جوړول، د ښو او عالي اخلاقو ترویجول، ذهنیتونه مثقف‌کول، علم او پوهه د وګړو ترمنځ عامول، د جامعې د افرادو ترمنځ د مهذب مسلمان تصویر انځورول، دا هر څه مستقیما د ځوانانو مسؤولیت دی، د ځوانۍ عمر عبث تېرول نه جبرانیدونکی زیان دی.

٢. **روغ صحت او سلامتیا ستر نعمت دی:** روغ صحت هم د الله ﷻ له نعمتونو څخه ستر نعمت دی، صحت او مریضي دواړه داسې شیزونه دي چې د انسان په واک او اختیار کې نه دي، روغتیا د انسان پر سر هغه تاج دی چې هغه یواځې ناروغان ویني، خو صحت من يې احساس نه کوي، خو کله چې روغ صحت الله ﷻ له انسان څخه واخلي، بیا يې په ارزښت پوه شي، سالم عقل په سالم جسم کې وي، روغتیا او صحت د الله ﷻ هغه مهرباني ده چې د دې په وسیله بنده کولای شی دنیوي او اخروي کارونه په ښه شان ترسره کړي، بناءً پر هر مسلمان لازم دي چې له دغه ارزښتناک نعمت څخه ګټه واخلي اوکوښښ وکړي چې د ژوند هره لحظه بېکاره او له نیک عمل څخه علاوه په بل څه تېره نه کړي. مریضی له داسې ضعیفه حالت څخه عبارت دی چې بنده له هر نیک او د خیر کار څخه بې برخې کوي.

٣. **د پانګې او مال دارۍ نعمت:** د الله ﷻ د نعمتونو له جملې څخه یو شتمني او مالداري ده چې د بشري ټولنې نیکمرغي ورپورې تړلې ده. حلاله شتمني الله ﷻ ته د نزدیکت، د پت او ابرو ساتلو، د بندګانو د حقوقو د اداکولو، له خپلوانو سره د صله رحمۍ ذریعه او سرچینه ده. بډایي او شتمني هغه وخت نعمت دی چې ورڅخه په سمه

توګه استفاده وشي اوکه چېرې په ناروا، حرامو او ناوړه لارو چارو کې ولګول شي، نو بیا لویه بدبختي ده. د دغه نعمت د شکر د ادا کولو لار د فرضي او نفلي صدقاتو ورکـــول دي، د فرضي صدقو څخه مراد د زکاتونو، فدیو، کفارو، نذرونو ورکول دي چې بنده له بخل او شومتیا څخه پاکوي او په مؤمن کې د ایثار، فداکارۍ، ورکړې او سخا احساس راژوندی کوي. د دې لپاره چې مسلمان باید یوازې د زکات په ورکولو بسنه ونه کړي، بلکه نفلي صدقې باید ورکړي او په نورو اجتماعي خیریه کارونوکې برخه واخلي، لکـــه: مدرسې، مکتبونه، روغتونونه، پلونه، ونې کینول، سرکونه جوړول. د ټولنې د ډېر بې وزله طبقې نابینایانو، شلو، ګوډانو او کونډو ضرورتونه پوره کول، هغه فقیران چې په کار قادر وي، ورته د کارونو زمینه برابرول.

۴. **مخکې له مرګه خپل ژوند غنیمت وګڼه:** ژوند هغه فرصت دی چې له لاسه ووت، بیا هیڅکله نه راځي او هرکله چې انسان مړ شي، د ده د نیکو عملونو دروازه بنده شي. پس له مرګه هر انسان له بیا ژوند څخه علاوه بل د هیڅ شي ارزو نه کوي، له همدې کبلـــه مخکې له دې چې دغه نعمت له لاسه ووځي، باید ورڅخه ګټه واخیـــستل شـــي او پـــه ژوندکې هغه اعمال ترسره شي چې د اخرت د ابدي ژوند لپاره سودمند وي، مخـــصوصاً داسې اعمال چې ثواب یې پس له مرګه هم بنده ته ور رسیږي، لکه: د علم ښوونه، د نیک اولاد روزنه، لارې، پلونه او سرکونه جوړول، مسجدونه ابادول، د اوبو څاګانې وېستل، ټول د خیر هغه کارونه چې انسانان ورڅخه په ژوندانه کې استفاده کوي.

**فعالیت:** زده کوونکی دې د وخت د ارزښت په اړوند په انفرادي یا ګروپي شکل معلومات وړاندې کړي.

**ارزونه**

۱. لاندې عبارات معنا کړئ:

شَبَابَكَ قَبْلَ هِرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ.

۲. د حدیث شریف معنا ووایاست!

۳. له پورتنیو مطلبونو څخه یو مطلب غوره او په اړوند یې یوه لنډه مقاله ولیکئ.

**کورنۍ دنده**

د لوست مطلبونه په خپل تعبیر په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

## د مزدور حق باید ډېر ژر ورکړل شي

عَن جَابِرٍ  قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ  صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (أَعْطُوا الأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ). رواه سنن ابن ماجة.

### د راوي پېژندنه

نوم يي جابر او د پلار نوم يي عبد الله د مديني منورې د خزرج له قبيلې څخه و، پلار او زوی دواړه جليل القدره صحابه وو. پيغمبرﷺ ورته پينځه ويشت ځله په يوه شپه کې د مغفرت دعاء کړې، له بدر او احد څخه علاوه يي په ۱۹غزواتو کې له رسول اللهﷺ سره اشتراک کړی دی. په خپل وخت کې د مديني منورې لوی مجتهد او مفتي و. او د هجرت په ۷۸کال کې يې له فاني دنيا څخه سترگې پټې کړې.

### د کلمو معنا

۱. أَعْطُوا: ورکړئ.
۲. الأَجِيرَ: مزدور ته.
۳. أَجْرَهُ: د هغه اجوره او مزدوري.
۴. قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ: مخکې له دې چې د هغه د وجود خوله وچه شي.

### د حديث شريف معنا

له حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي:(مزدور ته د هغه مزدوري مخکې له دي ورکړئ چې د هغه خوله وچه شي).

### د حديث شريف حکمت

په ټولنه کې انسانان يو پر بل مادي او معنوي ځانګړي حقوق لري، لکه: د مور او پلار حقوق، د مشرانو حقوق، د گاونډيانو حقوق او داسې نور چې د دې حقوقو په قطار کې يو هم داجير(مزدور) حق دی او هغه ته دهغه دزحمت گاللو اومشقت تېرولو په مقابل کې مزدوري ورکول دي. دا چې د نورو پرحقوقو تېری، هغه که په هر شکل او رنگ کې وي، ناروا دی. په همدې اساس پيغمبرﷺ فرمايلي دي چې د اجير په حق تېری مه کوئ او هغه ته د هغه حق بې له ځنډه ورکړئ.

**فعالیت**: مالک او اجیر ته څه کول په کار دي؟ په ګروپي شکل يې ځواب ووایاست.

## د حدیث شریف ګټې

۱. **د اجیر (مزدور) مزدوري ځنډول ظلم او ګناه ده**: مزدور د خپل وجود انــرژي د دې لپاره مصرفوي چې څه وګټي او ځان ته حلاله روزي پیدا کړي او د دې په انتظـــارکې وي چې د خپل زحمت او مشقت بدله ډېر ژر ترلاسه کړي، نو لازمه ده چې د هغــه مــزدوري دې دومره ژر هغه ته ورکړل شي چې حتی د هغه د وجود خوله هم نه وي وچه شوي او په دې کار کې ځنډ او تاخیر ظلم او ګناه ده، پیغمبرﷺ فرمایلي دي: (د غني له خوا د مزدور مزدوري یا د قرضدار قرض ځنډول ګناه ده). په بل حدیث کې راغلـــي دي، پیغمبــــرﷺ فرمایلي دي: (زه به د اخرت په ورځ د الله ﷻ په حضورکې د هغه مزدور د حق غوښـــتنه کوم چې په کار وګمارل شي او بیا د هغه مزدوري هغه ته ورنکړل شي).

۲. **د اجیر (مزدور) حقوق**: په نړۍ کې شتمن او غریب دوه ډوله انسانان اوسېږي چې یــو بل ته د ژوندانه په هره ګړۍ کې محتاج دي، شتمن غریب ته دکار لپاره او غریب مالدار ته د مزدورۍ لپاره اړتیا لري.
په اسلام کې د مالک او مزدور ترمنځ علاقه په وروروليۍ، کومک، مهرباني او یو بل ته په وفادارۍ ولاړه ده، نو لازمه ده چې له اجیر او مزدور سره نیکه رویه او ښه چلند وشـــي، ورته د کار پر وخت مناسبه غذا ورکړل شي، د کار کولو مناسب وسایل ورته مهیا شـــي، هغه ته دهغه مزدوري پر وخت ورکړل شي، هغه ته پر خپل ټاکلي وخت رخصت ورکړل شي، اجوره او مزدوري باید د کار په تناسب او یا ډېره وي او د هغه له بې وزلۍ څخـــه ناوړه استفاده ونه شي. د اجیر په حقوقو تیرې لویه ګناه ده.

۳. **کار او مزدوري د هرکس حق دی**: کار او مزدوري د ژوندانه هغه اساسي رکـــن دی چې بې له مزدورۍ شخصي اوټولنیز اقتصادي پرمختګ او نړیوال تمدن نـــا شـــونې دی. د نړۍ په هر ګوټ کې، هر وخت او هر کس د دې حق لري چې کار او مزدوري وکړي او د خپل توان په اندازه هرکار چې وغواړي، د ځان لپاره يې خوښ کړي، په دې شـــرط چې د اسلام د عالي مقاصدو او شرعي قوانینو او مقرراتو سره په ټکر کې نه وي.

۴. **په کار او وظیفه کې سستي او غفلت کول ګناه ده**: کار او وظیفه یـــو امانـــت دی، بناءً په شخصي او د دولت پر مامور واجب دي چې دغه امانت په پوره اخلاص، دیانـــت دارۍ، وفادارۍ، د وخت په پابندۍ او بې له تقصیره سره انجام کړي ترڅو هغه معاش چې

د دې لارې څخه يې ترلاسه کوي، ځان ته حلال، او د شخصي او ملي خيانت څخه ځان وژغوري.

پيغمبرﷺ فرمايلي دي: (کله چې له تاسې څخه څوک کوم کار کوي، بايد هغــه ښــه وکړي).

په کارونو او وظيفو کې سستي، غفلت او عبث وخت تېرول اجتماعي خيانت دی.

همدارازدولتي وسايل او شتمنۍ ملي امانت دی او بايد په سمه توګه وکارول شــي، پــه شخصي کارونو کې ورڅخه استفاده وانه اخيستل شي.

**فعاليت:** په اجير داسې کار تحميلول چې هغه يې توان ونه لري، څنګه کار دی؟

**ارزونه**

١. د حديث شريف راوي څوک و؟ په اړوند يې معلومات وړاندې کړئ.

٢. د حديث شريف په رڼا کې د مزدور حقونه کوم دي؟

٣. لاندې کلمې او عبارات معنا کړئ:

أَعْطُوا:

الأَجِيرَ:

أَجْرَهُ:

قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ.

**کورنۍ دنده**

١. حديث شريف له معنا سره په يادو زده کړئ.

٢. د مزدور د حقونو په باره کې يوه لنډه مقاله وليکئ.

# د علم زده کړه فرض ده

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ(:طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيضَةٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ).
رواه ابن ماجه.

## د راوي پېژندنه

د دې حديث شريف د راوي نوم حضرت انس او د پلار نوم يې مالک انصاري دی، د پيغمبر ﷺ په کور کې لوی شوی او پوره لس کاله يې د پيغمبر ﷺ خدمت کړی دی، د فقهاوو او مجتهدينو اصحابو له جملې څخه ګڼل کېږي. پيغمبر ﷺ ورته د اوږده عمر، په مال کې د برکت او جنت ته د تللو دعا کړې ده، د هجرت په ۹۳ کال د بصرې په ښار کې وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱. طَلَبُ: | پلټنه. |
| ۲. الْعِلْمِ: | پوهه. |
| ۳. فَرِيضَةٌ: | فرض دی. |
| ۴. عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ: | پر هر مسلمان باندې. |

## د حديث شريف معنا

حضرت انس رضي الله عنه له پيغمبر ﷺ څخه روايت کوي چې پيغمبر ﷺ فرمايلي: د علم طلب پر هر مسلمان فرض دی.

**د علم مفهوم:** علم يوازينۍ هغه کلمه ده چې ټولو الهامي او ديني معلوماتو او دنيوي غير الهامي څېړنو او تحقيقاتو ته شامله ده او يوازې په کوم خاص فن يا خاصو احکامو پورې منحصره نه ده.

## د حديث شريف حکمت

علم هغه رڼنايي ده چې د نړۍ سعادت او نيکمرغي، ټولنيز عدالت، اقتصادي پياوړتيا، سياسي او ساينسي ځغلنده پرمختګ ورپورې تړلی دی.علم دی چې انسان د جهالت له تورو تيارو څخه خلاصوي او ورته خير او سوکاله ژوند ورپه برخه کوي. د نړۍ په ډګر کې چې څومره لاس ته راوړنې تر سترګو کېږي دا هرڅه د علم له برکته دي.که چېرې علم نه وي، نو نړيواله بې

نظمي او د ټولنيز طبقاتي ډول ډول ظلمونو تور څادر به د ځمکې پر سر خپور وی. په همـــدې بناء پيغمبرﷺ د علم زده کړه پر هر چا لازم بولي.

**هڅونه:** د علم له لارې د لاس ته راوړنو ژوندي مثالونه دې زده کوونکي په ګروپي شکل په ګوته کړئ.

## د حديث شريف ګټې

۱. **د علم فضيلت:** د جاهليت د تورتمونو د له منځه وړلو لپاره د هر څه لومړی اللهﷻ خپل پيغمبر ته د علم په زده کولو امر وکړ، دا ځکه چې دټولو مشکلاتو حل په علم پورې اړه لري، علم اللهﷻ د معرفت او هغه ته د نږدې والي ذريعه ده، د علم زده کړه د اللهﷻ ستر عبادت دی، علم هغه ستر نعمت دی چې اللهﷻ خپل پيغمبر ته وايي چې د علم د زياتوالي غوښتنه کوه او داسې وايه: (ای زما ربه زما په علم کې زياتوالی راوله). علـــم د دنيـــا او اخرت سعادت او نېکبختي ده.

۲. **د علم طلب:** هر څه چې څومره ارزښت ولري، د هغه پلټنه هم په همغه اندازه ارزښتناکه وي، لکه چې د علم زده کړه لازمه ده، د علم پلټنه او طلب هم لازم دي، نو دا ضروري ده چې د پوهې د لاس ته راوړلو په غرض زيات کوښښ او زيار وويستل شي، دا ځکه چې د عامو انسانانو علم کسبي بڼه لري او بې له هلو ځلو د دې قيمتي نعمت ترلاسه کـــول ناممکن دي که د صحابه کرامو او تابعينو چې تر ټولو غوره انسانان دي، سيرت ته ځيـــر شو، ګورو چې هغوی د علم په خاطر په خالي نس شپې او ورځې تېرولې او پـــه مياشـــتو مياشتو پياده سفرونه به يې کول.

څوک چې د علم په طلب کې ووځي، د هغه سفر عبادت او د اللهﷻ په لاره کې حسابېږي او اللهﷻ ورته جنت ته د داخليدو لاره هواروي، ملايکې ورته خپلې وزرې پر ځمکه غوړوي، پـــه اسمان کې ملايکې او په اوبو کې ماهيان ورته د مغفرت دعا غواړي.

۳. **دکوم علم زده کړه فرض ده:** علمونه ډېر اقسام لري چې د ځينو علومو زده کړه پـــه هرکس فرض عين ده او د ځينو علومو زده کړه فرض کفايي ده، دا په دې معنا چې کـــه چېرې په ټولنه کې يو څه کسان زده کړه په غاړه واخلي، نو فرضيت يې د نورو له ذمـــې څخه ساقطيږي. هغه علم چې زده کړه يې پر هرکس فرض عين ده، له هغو اعتقـــادي او عملي احکامو څخه عبارت دي چې اللهﷻ بندهګان د هغې په زده کړه مکلف کړي دي،

لکه: په الله جل جلاله ایمان درلودل، د الله جل جلاله په ملایکو، پیغمبرانو، اسماني کتابونو، د اخــرت د ورځې په حالاتو ایمان لرل. د اسلام د پنځو ارکانو زده کړه، لکه لمونځ، روژه، زکات او حج کول. په هر حال له حدیث څخه دا په ډاګه معلومیږي چې د هر علــم زده کــړه ضروري ده.

۴. **د علم زده کړه پر هر مسلمان فرض ده:** د علم زده کړه په هر نارینـــه او ښــځینه مسلمان فرض ده ښځې چې د ټولني نیمه برخه تشکیلوي، په عمومي ډول هغه احکام چې سړو ته په کې خطاب شوی وي، ښځو ته هم شاملیږي. د پیغمبر ﷺ په زمانه کې ښــځو هم د سړو په څیر د علم زده کړې کولې او حتی ډیرې لویې لویې فقیهــې زنانــه هــم موجودې وې چې سړو به د پیغمبر ﷺ له وفات څخه وروسته هغوي ته په مـــسایلو کـــې مراجعه کوله او له هغوی څخه به یې پوښتنې کولې، لکه ام المؤمنین عائشة رضي الله عنها، خـــو د دوی د زده کړې زمینه باید د اسلامي احکامو مطابق تنظیم کړای شي.

**هڅونه:** د علم د زده کړې په اړه په خپلو کې سره خبرې وکړئ.

**ارزونه**

۱. د حدیث شریف معنا ووایاست.
۲. لاندې کلمې معنا کړئ:
- ✓ طَلَبُ:
- ✓ اَلعِلْم:
- ✓ فَرِیضَةٌ:

۳. د حدیث شریف ګټې ووایاست.

**کورنۍ دنده**

۱. حدیث شریف له معنا سره په یادو زده کړئ.
۲. د حدیث له مطالبو څخه د یو مطلب تر عنوان لاندې یوه مقاله ولیکئ!

## غصب

**د غصب تعریف:** غصب په لغت کې په ښکاره او زور سره له یو چا څخه د شي اخیستلو تـــه وایي او د فقهاو په اصطلاح کې: پرته د مالک له اجازې نه د هغه مــال اخیستل، پداسې ډول سره چې د ده لاس ورڅخه لنډ کړي، غصب بلل کېږي[1].

### د غصب د ناروا والي دلیل

د غصب حراموالی په قران کریم، احادیثو او اجماع باندې ثابت دی.

لومړی: قران کریم: الله جَلَّ جَلالُهُ فرمــايي: «وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ»(البقره، ۱۸۸) ژباړه: تاسې د یو بل مالونه په ناروا مه خورئ او مه يې چارواکو ته په رشوت کې ورکوئ، پدې خاطر چې تاسې به په ناروا د خلکو د مالونو ځینې برخه د پوهې سره خوړلې وي.

دويم: حديث: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: «لاَ يَحِلُّ مَالُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلاَّ بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ».[2]

د مسلمان له خوښې څخه پرته د هغه مال خوړل جواز نلري.

دريم: اجماع: مسلمانانو د غصب په حراموالي اجماع کړې او دا يې لويه ګناه شمېرلې ده، که څه هم د غلا نصاب ته ونه رسېږي.

**فعالیت:** دوه زده کوونکي دې د غصب صورت په ټولګي کې تمثیل کړي.

**د غصب احکام:** غصب درې حکمونه لري:

۱– ګناه: په هغه صورت کې چې څوک پدې پوه شي چې له ما سره د پردي شخص مال دی او بیا یې هم له ځان سره ساتي، ګناه ده او په اخرت کې ورباندې نيول کېږي.

۲- غصب شوی مال که چېرې غاصب سره شتون ولري ورکول يې لازم دي:

د رد او بېرته ورکولو مصارف په غاصب دي او هغه وخت مسترد کېږي چې د مالــک لاس ورباندې ثابت شي چې پدې کار سره غاصب له تاوان څخه خلاصېږي.

۳– کله چې غصب شوی مال له منځه تللی وي، تاوان به ورکوي:

برابره ده چې دا تلف د الله جَلَّ جَلالُهُ له لوري وي او که د مخلوق له لوري.

که چېرې غصب شوی مال مثلي وي د مثل ورکول يې لازم دي او که مثلي نه وي بيــا يــې قيمت ورکول لازم دي.

---

[1]– تکملة فتح القدیر ۳۶۱/۷.

[2]–رواه البیهقي ۱۶۹/۴.

## د غصب په هکله مسائل

۱– چا چې د کوم مسلمان د ساز او سرود سامان لکه طبله، ارمونیه، چمبه، شپیلۍ او دې ته ورته نور شیان مات کړل د صاحبینو په نظر تاوان نلري، ځکه چې دا د ګناه لپاره تیار شوي، نو قیمت ورکول یې باطل دي، همدا راز شرعاً یې له منځه وړل واجب دي او د امام صاحب په نظر تاوان لري، ځکه چې پرته لدې کارونو څخه نوره ګټه هم ترې اخیستل کېږي او همدا راز پلورل یې هم روا دي.[۱]

۲– که چېرې یو چا په ناپوهۍ پدې ګمان چې دا زما دي، څه غصب کړل، هیڅ ګناه ورباندې نشته او نه وربانډې نیول کېږي، ځکه چې دا خطا ده او په خطا انسان نه نیول کېږي.

## د قیمت د وجوب حالات

### قیمت په درې حالاتو کې واجبېږي

۱. کله چې له منځه تللی شي مثلي نه وي، لکه حیوانات.

۲. کله چې له منځه تللی شی د مثلیاتو له ډلې څخه وي، خو د مثل پیدا کیدل یې په بازار کې حقیقتاً او حکماً ناشوني وي.

۳. کله چې یو مثلي د بل جنس مثلي سره ګډ شي، لکه غنم له وربشو سره.[۲]

### ارزونه

أ. لاندې پوښتنو ته ځواب وواياست:

۱– غصب لغتاً او اصطلاحا تعریف کړی.

۲– د غصب اړوند احکام بیان کړئ.

۳– په کومو حالاتوکې د غصب شوي مال قیمت لازمېږي؟

ب– لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱– که چېرې څوک پدې ګمان چې مال یې خپل دی، څه غصب کړي.......... نلري.

۲– په زور باندې د یو چا مال اخیستل..................... بلل کېږي.

### کورنۍ دنده

د خلکو په مالونو باندې د تېري کولو د ضررونو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له پنځو کرښو څخه کمه نه وي.

---

[۱] – الجوهرة النيرة ۳– ۳۳۴– کتاب الغصب.

[۲]– وګوره: الدر المختار ۱۲۹/۵.

# لقطه (موندل شوی مال)

## د لقطې معنا

لقطه په لغت کې موندل شوي مال ته وايي.

او د فقهاوو په اصطلاح کې: د نامعلوم او غیر مباح مال موندل لقطه بلل کېږي.

## د لقطې حکم

د اشخاصو په اعتبار د لقطې حکم اختلاف لري چې ځینې وخت غوره، مکـــروه او کلـــه حرامیدای هم شي چې تفصیل یې په لاندې ډول بیانیږي:

۱- که چېرې څوک پخپل امانت باوري وي او موندونکی مال خپل خاونـــد تـــه ســـاتلی او ورسپارلی شي، بیا د موندل شوي مال ترلاسه کول ورته غوره او مستحب دي، ځکه چې دا د ده له واجباتو څخه شمېرل کېږي.

۲- که چېرې څوک پخپل امانت باوري نه وي او دا وېره ورسره وي چې ځان ته یې مباح ونه ګرځوم، بیا ورته د موندل شوي مال ترلاسه کول مکروه دي.

۳- که چېرې یو چا پخپل ځان د خیانت باور درلود او دا یې نه ګڼله چې دا به خپل خاوند ته وسپاري، بیا یې اخیستل حرام دي[1].

د موندل شوي مال حکم له دې امله چې تاوان به لري او که نه؟

لقطه یا موندل شوی مال له هغه چا سره چې موندلی یې دی، امانت شمېرل کېږي، که پرته له تېري څخه هلاک شي، تاوان نلري، خو که یې له تسلیمولو څخه منعه وکړه، بیا هلاک شو، تاوان لري.

**د لقطې ډولونه:** لقطه په دوه ډوله ده:

۱- د ساکښ مالونو موندل: لکه د ورک اوښ، غوا، پسه او داسې نورو څارویو موندل[2].

۳- د غیر ساکښو مالونو موندل.

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې په ټولګي کې د لقطې صورت تمثیل کړي.

## د لقطې سره څه کول پکار دي؟

په موندونکي باندې لازم دي چې اعلان یې کړي، بخاري او مسلم د زید بن خالد الجهني څخه روایت کوي فرمايي: له رسول الله ﷺ څخه د لقطې په هکله پوښتنه وشوه، رسول الله ﷺ وفرمایل: «عَرِّفْهَا سَنَةً» ژباړه: یو کال پورې یې اعلان کړه.[1]

---

[1]- بدائع الصنائع ۲۰۰/٦، فتح القدیر ۴۲۳/۴، الدر المختار ۴۰٦/۳.

[2]- بدائع الصنائع ۲۰۱/٦.

اوس د اعلان څرنګوالی، موده، ځای، د اعلان مصارف او هغه څه چې ورک مال ورته اړتیا لري، د رد او بېرته ورکولو شرط او ځان ته د خپلولو حکم يې څېړو.

## د اعلان څرنګوالی

د موندل شوي مال اعلان او غږ به په هغه ځایونو کې د ځینو نښانو په بیانولو سره کوي چې ډېر خلک پکې راټولیږي، لکه بازارونه او د مسجدونو دروازې.

## څوک به اعلان کوي؟

اعلان به خپله موندونکی او یا د موندونکي نائب کوي[2].

**د اعلان موده:** دا خبره څو اړخه لري:

**الف:** که چېرې موندل شوی مال د اهمیت وړ وي، پوره یو کال به اعلانېږي. خو فتوی پر دې ده چې د اعلان موده دې خپله موندونکي ته پرېښودل شي تر هغې پورې دې اعلان وکړي چې خلکو کې مشهوره شي، تر یو کاله اعلانول يې ضرور ندی.

ب: که چېرې موندل شوی مال حقیر یا ناچیزه وي، یعنې چې د غله لاس ورباندې نه پرې کېږي، هومره ورځې به اعلانېږي چې څومره موندونکي ته مناسبې ښکاري.

ج: که چېرې ډېر ناچیزه شی وي، لکه یو دانه خرما او یا د دې پشان نور، پرته له اعلان څخه دې خیرات کړي.

**د اعلان ځای:** د موندل شوي شي اعلان به په بازارونو، د جوماتونو په دروازو او د خلکو د ګڼې ګونې په ځایونو کې کېږي.

**د اعلان اجوره:** د اعلان مصارف هغه چې اخبار، تلویزیون او رادیو ته ورکول کېږي، موندونکی شخص به يې ګالي، ځکه دا د ده له واجباتو او ښیګڼو څخه شمېرل کېږي.

**د موندل شوي مال خاوند ته د واپسۍ شرط:** د مالک له لوري به موندونکي ته داسې نښه ویل کېږي چې په هغې باندې له نورو څخه جلا کېږي، لکه د بوجۍ د خولې تار، وزن، شمېر او داسې نورې نښې او یا دا چې شاهدانو باندې يې ثابت کړي چې دا د همده دی[3].

## د موندونکي د مالک کېدو حکم

**الف:** که چېرې موندونکی بډای یا غني وي، له موندل شوي مال نه ورته ګټه اخیستل روا ندي، بلکه فقیرانو ته به يې خیرات ورکوي، برابره ده چې پردو ته يې خیرات ورکوي او که

---

[1]– د دې حدیث تخریج البزار پخپل مسند کې کړی، الهدایة ۴۶۶/۲.

[2]– الدر المختار ۳۵۰/۳.

[3]– فتح القدیر ۴۳۱/۴.

خپلوانو ته، پروا نه کوي چې که پلار، مور، ښځه او یا یې زوی او هم لور وي، ځکه چې دا پردی مال دی، پرته د هغه له خوښې څخه ورنه ګټه اخیستل جواز نلري.

ب: که چېرې موندونکی غریب وي، بیا ورته ګټه اخیستل روا دي، ګواکې داسې ده لکه چې په ځان یې خیرات کړی وي.

ج: که چېرې له خیرات یا ګټې اخیستلو څخه وروسته د هغه مالک پیدا شو، د اختیار خاوند دی، که همداسې خیرات یې پرېږدي، نو ده ته به یې ثواب رسېږي او که له موندونکي څخه تاوان اخلي او که دا غوره ګڼي چې له هغه غریب څخه یې تر لاسه کوي چې خیرات ورکړل شوی دی، خو که چېرې هغه پیدا کړای شي.

د: دا ټول احکام د حل او حرمت په موندل شوي مال کې پلي کېږي.

**ارزونه**

✓ لاندې شیان په لنډ ډول بیان کړئ:

١- لقطه لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

٢- د لقطې حکم په لنډ ډول بیان کړئ.

٣- له لقطې سره څه کول پکار دي؟ بیان یې کړئ.

۴- ورک شوی مال باید په کوم ځای کې او تر کومې مودې پورې اعلان شي؟

۵- د لقطې د مالک کېدلو اړوند احکام وواياست.

✓ لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

١ - موندل شوی مال د موندونکي په مال کې.......... .... خو که............... وي ګټه اخیستل ورته روا دي.

٢- د لقطې د اعلان مصارف به........................ګالي.

**کورنۍ دنده**

که چېرې تاسو څه پیدا کړئ، د لوست په رڼا کې باید څه ورسره وکړئ، د دې موضوع په اړه په پنځو کرښو کې یوه مقاله ولیکئ.

# مزارعت (دهقاني)

هارون خپله ځمکه سهيل ته د کرلو لپاره د حاصلاتو په نيمايي، دريمه او يا څلورمه برخه ورکوي، دې کار ته د فقهې په علم کې مزارعت او مونږ ورته دهقاني وايو.

## د مزارعت تعريف

مزارعت ته په پښتو ژبه کې کښت يا دهقاني وايي او د فقهاوو په اصطلاح کې د ځمکې د خاوند له خوا له دهقان سره د حاصلاتو په يوه معلومه برخه (نيمايي، دريمه، څلورمه، شپږمه) عقد ته مزارعت ويل کېږي[1].

## د دهقانۍ رکن

د دهقانۍ رکن ايجاب او قبول دی.

## د دهقانۍ حکم

امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی د مزارعت عقد باطل ګڼلی او صاحبينو په څلورو ډولونو ښودلی چې درې يې روا او يو ډول يې باطل دی، په لاندې توګه:

### ۱- د جواز صورتونه

**الف:** چې تخم د ځمکې په خاوند او کولبه په دهقان وي.

**ب:** چې تخم، کولبه او کار په دهقان وي او د ځمکې د خاوند يوازې ځمکه وي.

**ج:** چې ځمکه، تخم او کولبه د يو وي او عمل په بل وي.

دا پورتني درې واړه صورتونه روا دي.

### ۲- د بطلان صورت

کله چې ځمکه او کولبه په يوه او تخم او کار په دهقان وي، دا ډول ځمکه ورکول باطله دهقاني ده، ځکه چې دلته د کولبې اجوره د حاصلاتو په ځينې برخه کې راغلې، حال دا چې هغه نامعلومه ده، نو جواز نلري.

[1]- بدائع الصنائع ۶/۱۷۵، الدر المختار ۵/۱۹۳.

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې د مزارعت د عقد هغه شکلونه چې د دوی په سیمو کې رایج دي، بیان کړي.

## د مزارعت شرطونه

د هغه چا په نظر چې دهقاني یې روا ګڼلې ده، د صحت لپاره یې ورته اته شرطونه ایــښي دي چې په لاندې ډول بیانېږي:

۱- عاقدین به د عقد اهلیت لري، یعنې عاقلان به وي.
۲- د دهقانۍ موده باید معلومه وي.
۳- ځمکه به د کرکیلې جوګه وي.
۴- مالک به ځمکه دهقان ته پرېږدي او خپل لاس به ورڅخه لنډوي.
۵- حاصلات به د دهقان او د ځمکې د خاوند ترمنځ په تیت او پراګنده توګه شریک وي، تر څو د شراکت معنا متحققه شي.
۶- د تخم خاوند به معلوم وي چې په چا دی، په دهقان یا خاوند د ځمکې، ترڅو له دې لارې د ځمکې او دهقان ګټه څرګنده شي.
۷- دهقان او د ځمکې خاوند به خپله برخه معلوموي.
۸- د تخم جنس به معلوم وي، ترڅو اجوره معلومه شي[1].

## د صحیحې دهقانۍ احکام

صحیح مزارعت خپل احکام لري چې موږ یې په لاندې کرښو کې رالنډوو:

۱- د دهقانۍ ټول کارونه چې د کښت د اصلاح لپاره تر سره کېږي، په دهقان بانــدې دي، لکه ساتنه او په تخم باندې د ځمکې لاندې مصارف کول.
۲- د کښت مصارف، لکه سره، خشاوه او غوبل (ترېشر) په دواړو باندې د خپلې برخې پــه اندازه دي.
۳- حاصلات به د هغه ټاکلي شرط لاندې چې د دواړو تر منځ ورباندې اتفــاق شــوی وي، وېشل کېږي، که چېرې ځمکې حاصلات ونه کړل، د هر یوه لپاره هیڅ شی نشته.
۴- د دهقانۍ عقد د هغه چا په حق کې چې تخم ورباندې وي، غیر لازم شمېرل کېږي، په بل لوري چې تخم یې ندی اچولی، لازم ګڼل کېږي.

---

[1]- تبیین الحقایق شرح کنز الدقایق ۵/۲۷۹.

٥- خړوبول او کرل د عرف او عادت مطابق تړاکل کېږي.

٦- که چېرې يو له عاقدينو د کښت له رسېدو څخه وړاندې مړ شي، کښت به تر پخلي پورې پرېښودل کېږي او د دهقان لپاره هيڅ نشته، ځکه د اجارې عقد د مودې د نه ختميدو له وجې باقي پاتې دی[1].

**فعاليت:** څو تنه زده کوونکي دې د دهقانۍ د شرطونو د ګټو په هکله معلومات ورکړي.

**د دهقانۍ پای:**

په لاندې حالاتو کې دهقاني پای ته رسېږي.

١- کله چې د دهقانۍ موده پای ته ورسېږي

٢- کله چې يو له عاقدينو څخه مړ شي.

٣- همدارنګه دهقاني په عذرونو سره هم پای ته رسېږي، عذرونه عبارت دي له:

أ- کله چې د ځمکې خاوند ډېر قرضدار او د ځمکې پلورلو ته اړ شي.

ب- کله چې دهقان ته عذر پيدا شي، يعنې داسې ناروغ شي چې د کار توان ونلري.

**ارزونه**

أ- لاندې شيان په لنډ ډول بيان کړئ:

١- مزارعت لغتاً او اصطلاحاً تعريف کړئ.

٢- د جايز مزارعت صورتونه په لنډ ډول ووياست.

٣- د مزارعت شرطونه په لنډ ډول بيان کړئ.

۴- د دهقانۍ د اړونده احکامو په هکله معلومات ورکړئ.

ب- لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

١- کله چې ځمکه او.................... په يوه، تخم او............... په دهقان وي، دا ډول ځمکه ورکول په دهقانۍ باندې باطله دهقاني بلل کېږي.

٢- حاصلات به له هغه تړاکلي شرط لاندې چې د دواړو تر منځ وربانـدې اتفاق شوی وي،........................ .

**کورنۍ دنده**

د لوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې وليکئ.

---

[1]- بدائع الصنائع ١٨١/٦، الدر المختار في رد المحتار ١٩٩/٥.

## مساقات (بنوالي)

کريم، حکمت ته خپل باغ د لاس ته راتلونکو مېوو په يوه معلومه برخه د خدمت لپاره ورکوي، د پورتنيو دوو کسانو دا معامله د بنوالۍ په نامه يادېږي او د فقهې په اصطلاح کې ورته مساقات وايي.

### لومړی: د مساقات معنا

مساقات ته په پښتو ژبه کې بنوالي وايي.

او د فقهې په اصطلاح کې: بنوالي ته د مېوو په يوه ټاکلې مشاع (تيته) برخه بانـــدې د مېـــوه لرونکو ونو ورکول بنوالي بلل کېږي.[1]

### دويم: د بنوالۍ حکم

امام ابوحنيفه (رح) بنوالۍ باطله بولي، خو صاحبين يې د څه شرطونو سره روا ګڼي، خو فتوی د همدوی په قول ده، ځکه نبي اکرمﷺ د خيبر له خلکو سره همداسې عمل کړی دی.

### دريم: د بنوالۍ رکن

د بنوالۍ رکن ايجاب او قبول دی.

### څلورم: هغه ونې چې بنوالي يې جواز لري

د ميوه لرونکو ونو، لکه خرما او انګور او همدا راز د نورو ونو او بوټو، لکه د بانجانو د بوټو په بنوالۍ ورکول، روا دي، ځکه چې د بنوالۍ جواز د اړتيا له مخې راغلی، نو ټولې ونې پکې راتلای شي.[2]

### پنځم: د بنوالۍ او دهقانۍ ترمنځ مهم توپيرونه په لاندې ډول دي:

١- کله چې يو له متعاقدينو څخه د بنوالۍ نه پلي کېدل غواړي، نو په ترســـره کيـــدو يـــې مجبوريږي، حال دا چې دهقاني داسې نده.

٢- کله چې د بنوالۍ موده پوره شي، عقد به د مېوې تر پخېدو پورې دوام مومي، باغبان تـــه د دې مودې مزدوري نه ورکول کېږي او مېوه به په ونه کې، پرته له اجورې څخه، تـــر پخېدو پورې وي، د دهقانۍ په خلاف.

---

[1]- التسهيل الضروري لمسائل القدوري ص ٥٦٥.

[2]- بدائع الصنائع ١٨٥/٦.

۳- کله چې بنوالي فاسده شي، بنوال ته به مناسبه مزدوري ورکول کېږي، حـــــا ل دا چـــې مزارعت داسې ندی.
۴- استحساناً په بنوالۍ کې د مودې ټاکل شرط ندي، ځکه چې د هرې مېوې د پخېدو موسم معلوم دی، حال دا چې دهقاني داسې نده.

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې د مساقات د عقد په هغو مېوو کې چې د دوی په ســـیمو کې شتون لري، تمثیل کړي.

### شپږم: د بنوالۍ شرطونه

### بنوالي خپل ځانګړې شرطونه لري چې لنډیز یې دا دی

۱- بنوال او مالک دواړه باید د عقد اهلیت ولري، یعنې د عقل خاوندان به وي.
۲- مالک به خپل لاس له ونو څخه لنډوي، یعنې ونې به بنوال ته سپاري.
۳- په لاس ته راتلونکو ټولو مېوو کې به دواړه شریک وي.

### اووم: د بنوالۍ احکام

د صحیحې بنوالۍ لپاره فقهاوو کرامو ځانګړي احکام راوړي چې لنډیز یې دا دی:
۱- ټول هغه کارونه چې ونه پرې ساتل کېږي او ورته اړتیا لري، لکه اوبه، ویـــالې جـــوړول، ساتنه او القاح (پیوند کول) په بنوال دي.
۲- ټول هغه مصارف چې ونو ته د قوت ببنلو لپاره دي، لکه سره یا کود او د ځمکې اړول، او د مېوو په ټولولو باندې راځي، دواړه به یې د خپلې برخې په اندازه مشترک ګالي.
۳- که چېرې با غ مېوه ونکړه، هیڅ یو له بل څخه څه نشي اخیستلای.
۴- د بنوالۍ عقد په دواړو لازم دی.
۵- د ځمکې خاوند، بنوال په کار کولو مجبورولای شي، خو نه د عذر په صورت کې.
۶- لاس ته راغلې مېوه به له ټاکلي شرط سره سم د دواړو تر منځ وېشل کېږي[1].

### اتم: د بنوالۍ پای

بنوالي په هغو شیانو پای مومي په کومو چې دهقاني پای ته رسېږي او عبارت دي لـــه لانـــدې شیانو څخه:

---

[1]- بدائع الصنائع ۱۸٦/٦، تبیین الحقایق شرح کنز الدقایق ۲۸۴/۵.

۱- کله چې له ټاکلي شرط سره سم بنوالي پای ته ورسېږي.
۲- کله چې یو له عاقدینو څخه خپل ژوند له لاسه ورکړي.
۳- همدارنگه په عذرونو باندې هم پای ته رسېږي او دا عذرونه عبارت دي له:
**الف**: کله چې بنوال معلوم او مشهور غل وي.
**ب**: کله چې بنوال داسې ناروغ شي چې د کار جوگه نه وي.

**فعالیت**: څو تنه زده کوونکي دې د مساقات د یو یو شرط د حکمت په هکله خپلو ملگرو ته معلومات ورکړي.

ارزونه

۱- لاندې شیان بیان کړئ:
۲- مساقات په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.
۳- د مساقات او مزارعت ترمنځ توپیرونه په گوته کړئ.
۴- د باغبانۍ شرطونه وواياست.
۵- د بنوالۍ لومړی او دوم حکم بیان کړئ.
٦- د بنوالۍ دریم او څلورم حکم وواياست.
۷- د بنوالۍ پنځم او شپږم حکم بیان کړئ.
۸- د بنوالۍ عقد په کوم وخت کې پای مومي؟
۹- لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:
۱۰- بنوالي له دهقانۍ څخه پدې کې توپیر لري چې د مودې لــه پــوره کیــدو ســره سره...... د مېوې تر پخېدو پورې دوام مومي.
۱۱- په بنوالۍ کې د مودې ټاکل..........، ځکه چې...........

## کورنۍ دنده

هغه مهم توپیرونه چې بنوالي یې له دهقانۍ سره لري، په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# وقف

## لومړی: د وقف معنا

وقف په لغت کې حبس او ساتلو ته وايي.

او د فقهاوو په اصطلاح کې:

۱- وقف د ځمکې يا جنس بندول دي، پداسې حال کې چې د ملکيت حکم يې له واقف سره پاتې کېږي او ګټه يې خيراتېږي، وقف بلل کېږي.

۲- او يا د عين بندول او خيراتول دي، د ټولنې د خدمت لپاره. لومړی تعريف امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی او دويم يارانو کړی دی.[۱]

## دويم: د وقف د روا والي دليل

وقف د دې په خاطر روا شوی چې محتاج خلک د ببنل شوي عين څخه پداسې توګه ګټه واخلي چې اصل عين يې باقي وي، نو پدې ډول به وقف شوی مال د واقف لپاره صدقه جاريه وي، نبي اکرمﷺ فرمايي: «إِذَا مَاتَ الإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلاَّ مِنْ ثَلاثَةِ أَشْيَاءَ: مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ» [۲] ژباړه: کله چې انسان مړ شي ټول اعمال يې قطع کېږي، خو درې شيان دي چې دا ورته له مرګ څخه وروسته هم ګټه رسوي: تل پاتې صدقه، ګټور علم او نيک اولاد چې ورته دعا کوي.

## دريم: د وقف حکم

امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی وقف جايز غير لازم عقد ګني، بنا پر دې مالک يې بېرته غوښتلای شي او ورڅخه د ده لاس نه لنډيږي، خو که چېرې د وخت قاضي ورباندې پريکړه صادره کړي او يا د ده تر مرګ پورې تړاو ولري، بيا د مالک له لاسه وځي.[۳]

د يارانو په نظر، کله چې وقف صحيح وي، لازم ګڼل کېږي او د مالک له لاسه د وقف له وينا سره سم وځي.

لنډه دا چې د امام ابوحنيفه رحمه الله تعالی په نظر وقف جايز غير لازم عقد دی او د يارانو په نظر کله چې صحيح واقع شي، وقف شوی شی د مالک له لاسه وځي.

---

۱- فتح القدير ۳۲/۵.
۲- صحيح مسلم.
۳- الدر المختار ۱۳۹/۳، الی ۳۹۲.

**ځلورم: د وقف رکن**

د وقف رکن هغه لفظ او صیغه ده چې په وقف دلالت کوي.

**پنځم: د وقف شرطونه**

۱- وقف کوونکی باید عاقل او بالغ وي.

۲- وقف کوونکی به آزاد، د ببنبل شوي شي مالک او هوښیار وي.

**د موقوف شرطونه**

۱- وقف شوی مال به ځمکه او یا هغه شی وي چې له بقا سره ترېنه ګټه اخیستل کېږي، لکه د جهاد لپاره د وسلو او اسونو وقف کول.

۲- وقف شوی مال به معلوم او څرګند وي.

۳- وقف شوی مال به د وقف په وخت کې د واقف ملکیت وي.

۴- وقف شوی مال به بېل او جلا وي تیت او پراګنده به نه وي.

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې د وقف څو صورتونه تمثیل کړي.

**شپږم: د وقف کتونکی یا ناظر**

واقف ته روا ده چې د وقف نظارت پخپله وکړي او یا یې هغه چا ته وسپاري چې ورته وقف شوی وي، همدارنګه پرته له دوی دواړو څخه بل څوک هم ورته ټاکل کېږي، که نوم یې معلوم وي، لکه فلانی او یا ورته څه صفتونه وټاکي، لکه چې ووایي: هوښیار، عالم او یا نور داسې صفتونه ولري، نو زما د وقف نظارت به کوي.

د وقف د ناظر شرطونه په لاندې ډول بیانېږي:

۱- د وقف ناظر باید متقي او پرهېزګار شخص وي.

۲- د ورسپارل شوې دندې کفایت باید ولري.

**اووم: د ناظر دنده**

۱- د وقف شوي شي ساتل.

۲- د وقف شوي شي ابادول.

۳- وقف شوی شی په کرایه یا دهقانۍ ورکول او د دې لپاره لانجه او مخاصمه کول.

**اتم: د ناظر ګوښه کول**

واقف د وقف ناظر ګوښه کولی شي.

**نهم: د وقف اړوند مسئلې**

۱- یواځې زامنو ته پرته له لوښو د مال وقف کول مکروه تنزیهي دي، ځکه چې دا کار د جاهلیت کړنو ته ورته دی.

۲- د وقف مصارف به د وقف شوي مال له ګټې څخه ورکول کېږي.

۳- که چېرې کوم جومات ړنګ او بیا هیڅوک یې ابادولو ته غاړه کښېنږدي، پداسې حال کې چې خلک ورته اړتیا ونلري، ځکه چې بل مسجد ورسره اباد شوی وي، دا ځای د شیخینو (امام ابو حنیفة او امام ابو یوسف) په نظر همداسې تر قیامته مسجد پاتې کېږي، ابادوونکی او د ده وارثان یې ببرته مالک کیدای نشي. همدارنګه له بل ځای سره یې تبدیلولای هم نشي او نه یې بل مسجد ته د اسبابو انتقالول جواز لري، که لمونځ پکې کېږي او که نه کېږي.[1]

۴- د مسجد په دیوال د تیر اېښودل په کرایه او یا پرته له کرایې روا ندي.[2]

**فعالیت:** څوتنه زده کوونکي دې د وقف د شرطونو ګټې په انفرادي توګه خپلو ملګروته بیان کړي.

**ارزونه**

لاندې سوالونه ځواب کړئ:

۱. وقف په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟
۲. د وقف شوي مال شرطونه بیان کړئ.
۳. د وقف شوي مال ساتوونکی باید څوک اوسي؟
۴. د وقف د ساتوونکي دنده څه ده؟
۵. ایا هغه ځمکه چې د مسجد په نوم وقف شوی وي، د تل لپاره د مسجد په نوم یادېږي؟

لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱. زامنو ته پرته له لوښو د مال وقف کول.............................................. .
۲. د وقف کوونکي شرطونه په لاندې ډول دي:..................................................

**کورنۍ دنده**

د لوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

[1] هندي فتاوی ۲- ۴۵۸- الفصل الاول فیما یصیر به مسجداً.

[2]- الدر المختار ۳/۴۰۶.

## صلح (سوله)

زيد او زبير په خپل منځ کې په يو پټي باندې شخړه وکړه، يو وايي: پټی زما دی او بل وايي زما دی. د کلي سپين ږيرو د دوی تر منځ د دوی په خوښه پرېکړه وکړه، زيد ته يې د مدعي به پټي دريمه برخه د صلح (سولې) په بنياد ورکړه او زبير پرې قانع شو. خو که دوی محکمې ته مراجعه وکړي، نو قاضي د دوی تر منځ صلح نه کوي چې د شخړې په لومړي ډول له منځه وړلو ته صلح او دويم ډول له منځه وړلو ته قضا ويل کېږي.

### د صلحې تعريف

صلحه په لغت کې سمولو ته وايي.

**او د فقهاوو په اصطلاح کې:** هغه عقد چې شخړې له منځه وړي، صلحه بلل کېږي.[1]

### د صلح حکم

د خلکو تر منځ د شخړو له منځه وړل ښه کار دی.[2]

### د صلح د روا والي دليل

صلح په قرآن کريم، احاديثو او اجماع باندې روا شوې ده.

1. **قرآن کريم:** الله تعالی فرمايي: (وَالصُّلْحُ خَيْرٌ) [3] صلح کول غوره او بهتر کار دی.
2. **نبي اکرمﷺ فرمايي:** «الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلاَّ صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلاَلاً»[4] ژباړه: صلحه (سوله) د مسلمانانو تر منځ روا ده، خو هغه صلحه ناروا ده چې حلال حرام، او حرام حلال کړي.
3. **اجماع:** ټولو علماوو کرامو د صلحې په روا والي د دې لپاره اجماع کړې چې ستونزې او مشکلات له منځه يوسي.

### د صلحې د روا والي حکمت

د اختلاف او تفرقې له منځه وړل، د محبت او دوستۍ فضا د مسلمانانو تر منځ ساتل دي.

---

[1]- وګوره: تکملة فتح القدير: ( ٧\ ٣) تبيين الحقائق: ٥\ ٩.

[2]- وګوره: تبيين الحقائق: جلد، ٥، ص: ٣٠.

[3]- سورة النساء، آيت ١٢٨.

[4]- وګوره: السنن الکبری للبيهقي: جلد، ٦، ص، ٦٥.

## د صلحې حالات

کله چې دوه تنه یو پر بل باندې د څه مال دعوه وکړي، مدعي علیه به له لاندې درې حالاتو څخه خالي نه وي:

١ **په دعوا به اقرار کوي:** لکه دا چې احمد په بکر باندې د یو جرنېټر دعوه وکړي، بکر د ده دعوه ومني، د سپین ږیرو له مداخلې وروسته دواړه په بل شي سره روغه، جوړه وکړي، معنا دا چې دعوه یې په جرنېټر کړې وي او جوړ جاړی په غوا وکړي، دا داسې ده لکه چې جرنېټر یې د غوا په بدل کې پلورلی وي، دا ډول صلحه روا ده او د بیعې احکام ورباندې مرتبېږي، ځکه چې د بیعې په معنا ده.

**فعالیت:** څو تنه زده کوونکي دې د صلحې صورتونه تمثیل کړي.

٢ **له دعوا څخه د مدعی علیه انکار:** په پورتني صورت کې بکر له جرنېټر څخه منکر شي او بکر یې نه مني، مګر د احمد له ډېر اصرار څخه وروسته سپین ږیري په بکر څه شی ومني او بکر به یې احمد ته ورکوي، دا ډول صلح هم جواز لري.

٣ **د مدعی علیه د چوپتیا او سکوت حالت:** معنا دا چې په پورتني مثال کې بکر د احمد په دعوا سکوت اختیاروي او هېڅ نه وایي، دې صورت کې هم د کلي مشران په بکر څه مني او احمد ته یې تسلیموي، دا هم جواز لري.

**د صلحې احکام:** صلحه خپل ځانګړي احکام لري چې په لاندې ډول بیانېږي:

١. د دعوا کوونکو تر منځ د شخړې او جنجال له منځه وړل، کوم چې وروسته لدې د دواړو دعوه پدې اړوند نه اورېدل کېږي.

٢. که چېرې دعوا په پټي وي او صلح هم په پټي باندې تر سره شوې وي، شفیع ته د شفعې حق ثابتېږي، ځکه چې د مدعی بها پټی یې په مصالح بها پټي وپلوره، ځکه چې د پټي په پلورلو باندې شفعه ثابتېږي.

**فعالیت:** زده کوونکي دې په انفرادي توګه د مسلمانانو ترمنځ د صلحې ګټې بیان کړي.

**ارزونه**

لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. صلحه په څو ډوله ده ؟ په لنډه توګه یې بیان کړئ.

۲. د صلحې یو مثال ووایاست!

۳. په صلحه کې د مدعي علیه حالات ووایاست!

۴. د صلحې اړوند احکام بیان کړئ.

لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۵. صلحه په‌لغت کې................. ته وایي. او په اصطلاح کې:........... .

۶. که چېرې دعوه په پټې وي او صلحه هم په پټې باندې تر سره شوې وي، شفیع ته............ .

**کورنۍ دنده**

د صلحې د ګټو په هکله یوه مختصره مقاله ولیکئ.

# شرکت

## د شرکت تعریف

شرکت په لغت کې اختلاط او ګډولو ته وايي.

**او د فقهاوو په اصطلاح کې:** عبارت له هغه عقد څخه دی چې د شریکانو تر منځ په سرمایه او ګټه کې ترسره کېږي، معنا دا چې شریکان یو له بل سره پدې اتفاق کوي، څرنګه چې زموږ سرمایه ګډه ده، همدا شان ګټه مو هم سره ګډه ده.[1]

## د شرکت د روا والي دليل

شرکت په قرآن‌کریم، احادیثو او اجماع باندې ثابتېږي.

١. **الله تعالی فرمايلي دي:** (وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنْ الْخُلَطَاء لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ) [2] ډېر داسې شريکان شته چې يو پر بل باندې تېری کوي.

**نبي کريمﷺ فرمايي:** « يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ فَإِذَا خَانَ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا ». [3]

ژباړه: دا قدسي حديث دی، رسول اللهﷺ وايي: الله تعالی فرمايي: زه د دوه شريکانو دريم يم، په ساتنه او مرسته کې، او تر هغه وخته پورې ورسره يم چې له خپل ملګري سره خيانت ونکړي، کله چې يو له دوی څخه له خپل ملګري سره خيانت وکړ، زه ورڅخه وځم او خپله مرسته ترې اخلم. معنا دا چې کله سره ښه چلېږي، الله تعالی يې په کار کې برکت اچوي او کله چې خيانت ورڅخه واقع شي، مرسته او برکت ورڅخه پورته کېږي.

---

[1]- وګوره، فتح القدير د عنايې سره، ج: ۲. ص: ۵. تبيين الحقائق: ج: ۳. ص: ۳۱۲. رد المحتار، ج: ۳. ص: ۳٦۴.

[2]- سورت ص، آیت: ۲۴.

[3]- اخرجه البيهقي في السنن الكبرى، ج: ٦. ص: ۷۸.

۲. اجماع: ټولو مسلمانانو د شرکت په جواز اجماع کړې ده.

## د شرکت د روا والي حکمت

خلکو ته د مرستو لارې چارې برابرول، پداسې شکل سره چې یو بل سره مالونه ګډ او غټې غټې شرکتونه جوړ کړي د کومو چې یو تن ته چلول ګران وي.

## د شرکت ډولونه

۱. د املاکو شرکت.

۲. د عقودو شرکت.

### د املاکو شرکت

دا هغه شرکت دی چې دوه یا ډېر اشخاص پرته د شرکت له عقد څخه د یو عین مالکان شي او دا په دوه ډوله دي:

**۱. اختیاري شرکت**

دا هغه شرکت دی چې د شریکانو په کړنې سره رامنځ ته شي، لکه: یو شی په ګډه واخلي یا د بل چا له لوري ورته وبښل شي او دوی یې قبول کړي.

**۲. اجباري شرکت:**

دا هغه شرکت دی چې دوه تنو ته پرته د دوی له کړنې ثابت شي، لکه: دوه تنو ته په ګډه یو شی په میراث پاتې شي. [1]

**فعالیت:** یو شمېر زده کوونکي دې د شرکت ډولونه په ټولګي کې تمثیل کړي.

**د دې شرکت حکم:** هر شریک ته په شرکت کې روا نده چې د خپل ملګري په برخه کې پرته د هغه له اجازې څخه تصرف وکړي، ځکه چې یو په بل باندې هیڅ ولایت نه لري.

---

[1]- وګوره، بدائع الصنائع، ج: ٦. ص: ٥٦. فتح القدیر، ج: ٥. ص: ٣. رد المحتار، ج: ٢. ص: ٣٦٤.

**د عقودو شرکت:** د عقودو شرکت عبارت له هغه عقد څخه دی چې دوه یا ډېر کسان یې په مال او ګټه کې د اشتراک په خاطر له یو بل سره کوي.

## د عقودو د شرکت ډولونه: د عقودو شرکت په درې ډوله دی:

۱. د مالونو شرکت.
۲. د اعمالو او کارونو شرکت.
۳. د وجوهو شرکت.[۱]

## د عقودو د شرکت رکن

ایجاب او قبول د عقودو د شرکت ارکان دي.
لومړی د مالونو شرکت: دا هغه شرکت دی چې دوه تنه په مال کې شریک شي او یو بل ته ووايي: زه او ته دواړه په اخیستلو او پلورلو کې شریک یو او که چېرې موږ ته الله تعالی ګټه را په برخه کړه، دا به د دواړو ترمنځ پدې شرط شریکه وي، دا شرکت په دوه ډوله دی:

### ۱. د عنان شرکت

دا هغه شرکت دی چې دوه تنه د تجارت له پاره سرمایه پداسې شرط چې ګټه به یې د دواړو تر منځ وېشل کېږي را ټولوي او ازاد تجارت ورباندې کوي، د عنان شرکت بلل کېږي.
دا هغه ډول شرکت دی چې د خلکو تر منځ په اوسني عصر کې رایج او خلک یې کوي، ځکه چې دا کوم حد نه لري چې سړی دې څومره سرمایه ولري چې دا شرکت ورباندې وکړي.
بلکې هر څومره شی چې په واک کې لري، هغه له بل سره شریکولای شي او د خپلې سرمایې او ټاکلي شرط مطابق په ګټه کې شریکیږي.
دې شرکت کې دا کېدای شي چې یو د شرکت مسئول او بل هېڅ مسئولیت ونه لري، یو کار کوي او بل یې نه کوي، په شرکت او حکم یې کوم اثر نه پرېوځي.

### ۲. د مفاوضې شرکت

دا هغه شرکت دی چې شریکان په سرمایه، ګټه او تصرفاتو کې برابره ونډه ولري، د مفاوضې شرکت بلل کېږي، بناءً که چېرې د شریکانو سرمایه او نورشیان سره مساوي نه وي، بیا ورته

---

۱– وګوره، تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق، ج: ۳. ص: ۳۱۳.

د مفاوضې شرکت نشو ویلای، مثلاً: د یوه سړي سرمایه دوه زره افغانۍ او د بل یو نیم زر افغانۍ ده او په ګډه تجارت پیل کړي، د مفاوضې شرکت ندی. [1]

دا ډول شرکت روا دی، نبي کریمﷺ فرمایي: "فَاوِضُوا، فَإِنَّهُ أَعظَمُ لِلبَرَكَةِ"[2] تاسې د مفاوضې شرکت وکړئ، دا ځکه چې پدې کې برکت دی.

**فعالیت:** څو تنه زده کوونکي دې په انفرادي توګه د شرکت د یو یو شرط د حکمت په هکله خپلو ملګرو ته معلومات ورکړي.

**ارزونه**

أ. لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. شرکت لغتاً او اصطلاحاً تعریف کړئ.

۲. د املاکو شرکت په څو ډوله دی؟ نومونه یې واخلئ!

۳. د عقودو د شرکت ډولونه په لنډه ډول ولیکئ.

۴. د عنان شرکت تعریف کړئ.

۵. د مفاوضې شرکت تعریف او بیا یې له عنان شرکت سره توپیر وښایئ.

ب. لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. اجباري شرکت: هغه شرکت دی چې...................... ته پرته د دوی له.............. ثابت شي، لکه.......................................

۲. د عقودو شرکت په......................... ډوله دی.

**کورنۍ دنده**

له خپلې سیمې څخه د اجباري او عنان شرکتونو یو یو مثال ولیکئ.

---

[1]- وګوره: المبسوط، ج: ۱. ص: ۱۵۱. فتح القدیر، ج: ۵. ص: ۲۰. بدائع الصنائع، ج: ٦. ص: ۵۷. رد المحتار، ج: ۳. ص: ۳۷۳.

[2]- وګوره: نصب الرایة في تخریج احادیث الهدایة، ج: ۲. ص: ۴۷۵.

# د وجوهو شرکت

## د وجوهو شرکت

دا هغه شرکت دی چې مخور خلک، پرته له دې چې سرمایه ولري، سره شریکیږي، د خپل اعتبار پر بنسټ شیان په پور اخلي او بیا یې په نقدو پلوري او کومه ګټه چې وکړي، پخپلو منځونو کې یې د ټاکلي شرط سره سمه وېشي.

دا ډول شرکت روا دی.[1]

پدې شرکت کې دا هم روا ده چې د یوه ګټه لږه او د بل ګټه ډېره وي، خو تاوان به په هغه اندازه ورباندې راځي څومره چې ضامن شوی دی.

## د اعمالو او ابدانو شرکت

دا هغه ډول شرکت دی چې دوه یا ډېر کسان پخپله غاړه باندې د چا څه کارونه ومني او د هغو له تر سره کولو وروسته لاس ته راغلې ګټه پخپل منځ کې د ټاکلي شرط سره سمه ووېشي.

معنا دا چې خیاطان، اهنګران او یا نور کسبګر په شریکه یو کار ونیسي وروسته د کار او مصارفو ګټه پخپل منځ کې ویشي.

**فعالیت:** د مضاربت او شرکت ترمنځ توپیر ووایاست.

## د عقودو د شرکت شرطونه:

۱. **د ګټې اندازه به ټاکلې او محدوده وي:** معنا دا چې پنځمه، دریمه او یا څلورمه برخه کې به یو بل سره شریک وي، بناءً که چېرې مجهوله وي، بیا شرکت فاسد دی.

۲. **د ګټې اندازه به مشاع (تیته) وي:** بناءً که چېرې داسې ووایي چې لس افغانۍ ګټه یې زما ده او نوره ستا ده، دا شرکت فاسد دی.

### د مالونو د شرکت شرطونه:

۱. د کار او عمل شرط کول: په عنان شرکت کې دا روا ده چې شریکان یو پر بل باندې او یا یو تن باندې کار شرط کړي، لکه چې داسې شرط کړي: دواړه به په شریکه اخیستل او

---

[1]– وګوره: بدایع الصنائع، ج: ٦. ص: ٥٧. المبسوط، ج: ١١. ص: ١٥۴. فتح القدیر، ج: ۵. ص: ٣٠.

خرڅول کوو، که خدای تعالی ګټه را نصیب کړه، زما او ستا ګډه ده او یا دا چې یو به اخیستل او خرڅول کوي او ګټه به د دواړو شریکه وي.

۲. د ګټو وېش: ګټه به په سرمایه وېشل کېږي، بناءً که چېرې سرمایه مساوي وي، ګټه به یې هم مساوي وي، برابره ده چې کار یو تن کوي او که دواړه، ځکه چې ګټه به یا په کار وېشل کېږي او یا په سرمایه.[۱]

۳. هر کله چې د شرکت مال مخکې د مال له اخیستلو او یا ګډولو څخه له منځه ولاړ شي، شرکت باطلیږي.

۴. په عنان شرکت کې هر شریک د اخیستلو او خرڅولو واک لري، ځکه د شرکت په اساس هر یو بل ته د دې اجازه ورکړې ده.

## د شرکت باطلوونکي: شرکت په لاندې شیانو له منځه ځي:

۱. د شریکانو له لوري د شرکت ماتول: کله چې د شریکانو له لوري شرکت مات او له منځه ولاړ شي، شرکت باطلېږي.

۲. کله چې د شرکت یو شریکوال مړ او له منځه ولاړ شي، شرکت له منځه ځي.

۳. کله چې د شرکت مال وړاندې د شرکت له قیام څخه د منځه ولاړ شي، شرکت باطلېږي.

## هغه شیان چې شرکت په کې نه صحیح کېږي

کله چې شریکان په یو مباح عمل باندې چې په لاسته راوړلو یې سړی مالک ګرځي لکه ښکار، لرګي راټولول، د معدنونو د ایستلو لپاره د ځمکې کیندل او داسې نور، دا ټول شرکتونه صحیح ندی او فاسد شمېرل کېږي، چا چې څه راټول او موندل، د هغه دي.[۲]

---

[۱]– وګوره: فتح القدیر، ج: ۵. ص: ۲۱. تبیین الحقائق، ج: ۳. ص: ۳۱۸. بدائع الصنائع، ج: ٦. ص: ٦۲.

[۲]– وګوره: تبیین الحقایق شرح کنز الدقائق، ج: ۳. ص:۳۲۳. بدائع الصنائع، ج: ٦. ص: ٦۳. المبسوط، ج: ۱۱. ص: ۲۱٦ او ورسته پاڼه.

## ارزونه

**الف: لاندې اصطلاحات تعریف کړئ!**

۱. د وجوهو شرکت تعریف کړئ.

۲. د اعمالو او ابدانو شرکتونه د مثال په وړاندې کولو سره شرحه کړئ.

۳. د عقودو د شرکت شرطونه بیان کړئ.

۴. په کوم شرکت کې د کار کول شرط ګڼل کیږي؟

۵. په کومو حالاتو کې شرکت باطلیږي؟

**ب: لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:**

د عقودو شرکت څو شرطونه لري؟ په لنډه ډول یې بیان کړئ.

۱. کله چې د شرکت مال وړاندې د............... څخه د منځه ولاړ شي، شرکت.................... .

۲. د وجوهو شرکت دا هغه شرکت دی چې.................................. سره شریکیږي

### کورنۍ دنده

د وجوهو او اعمالو د شرکتونو د ګټو په هکله په پنځو کرښو کې یوه مقاله ولیکئ.

# شفعه

## د شفعې تعریف

په لغت کې: زیادت او جفت والي ته وایي.

**او په اصطلاح کې:** د ګاونډي له ضرر څخه د خلاصون په خاطر د ځمکې د تملک حق ته ویل کېږي.

## د شفعې مشروعیت

د شفعې حق د دې لپاره ضروري دی چې له رومبني شریک څخه د نوي شریک ضرر دفعه شي.

## د شفعې حکم

د شفعې غوښتل یو روا حق دی.

## د شفعې اړوند ځینې اصطلاحات

**شفیع:** هغه چا ته ویل کېږي چې د شفعې حق ولري.

**مشفوع:** هغې ځمکې ته ویل کېږي چې د شفعې حق ورپورې تړلی وي.

**مشفوع به:** له هغه ملکیت څخه عبارت دی چې له امله یې د شفعې حق ثابتېږي.

**مشفوع علیه:** د ځمکې اخیستونکي ته ویل کېږي.

## د شفعې سبب

د شفعې سبب له پلورل شوې ځمکې سره د شفیع د ځمکې پیوستوالی دی، برابره خبره ده چې دا پیوستوالی لار یا ګاونډیتوب وي.

## په شفعه کې د شرکت ډولونه

په شفعه کې شرکت په دوه ډوله دی:

١. په خرڅه شوې ځمکه کې شرکت: هغه داسې چې شفیع په خرڅه شوې ځمکه کې برخه ولري.

٢. د خرڅې شوې ځمکې په حقوقو کې شرکت لکه: د اوبو خوړلو حق، د خاصې لارې حق او داسې نور.

## د شفعې ثبوت

د شفعې حق د ځمکې د خرڅولو او د شفعې د اسبابو د وجود په صورت کې ثابتېږي.

## د شفعې شرطونه

هغه بیعه چې شفعه په کې ثابتېږي، باید لاندې شرطونه ولري:

١. عقار (ځمکه) باید مملوکه وي که څه هم د تقسیم قابلیت ونه لري.

٢. بیعه باید صحیح او نافذه وي.

**په لاندې صورتونو کې شفعه نه ثابتیږي:**

۱. بلاعوضه هبه، صدقه، وقف، میراث، وصیت یا هغه ځمکه چې د هغې بدل مال نه وي.
۲. هغه ابادي او ونې چې ځمکه یې دولتي وي.
۳. د شریکانو په خپلو کې د عقار (ځمکې) تقسیم.
۴. هغه بیعه چې د خیار شرط په کې شرط شوی وي.
۵. هغه مبیعه چې د دولت له خوا د بولۍ په توګه پلورل شوې وي.
۶. هغه مبیعه چې د دولت له خوا د استملاک یا د مسجد د جوړولو یا د مسجد سره د یو ځای کولو په منظور پلورل شوې وي.

## د شفعې طلب

د شفعې طلب او غوښتنه په لاندې دریو طریقو سرته رسیږي:

۱. مواثبت (بې له ځنډه) طلب: دا هغه طلب دی چې هر کله شفیع له هغه مجلس څخه خبر شي چې په کې بیعې صورت موندلی وي، فوراً پرته له ځنډه او پرته له هغه څه چې د ده په انصراف دلالت کوي، د شفعې غوښتنه وکړي.
۲. **د استشهاد طلب (د شاهدانو په واسطه):** دا هغه طلب دی چې شفیع پر پلورونکي چې ځمکه یې په لاس کې وي یا پر پېرودونکي چې ځمکه یې په لاس کې نه وي، شاهدان ونیسي، که چېرې شفیع د شاهدانو په نیولو توان ولري، خو شاهدان ونه نیسي، د شفعې حق یې باطلیږي.
۳. **د تملک طلب (د دعوا طلب):** د تملک طلب په محکمه کې د خصومت د دعوی له دایرولو څخه عبارت دی.

## د شفعې ځینې احکام

❖ شفیع په ټولو حقوقو او وجایبو کې د بایع په وړاندې د مشتري غوندې دی. ځمکه د شفیع په حق کې نوې مبیعه ده، برابره ده که شفیع د قضاء له لارې لاس ته راوړې وي یا د بایع په خوښه یې ترلاسه کړې وي، نو په همدې بناء شفیع د خیار عیب او د خیار رؤیت حق لري.

❖ که چېرې شفیع ته د مبیعې په ورکولو حکم وشي، پداسې حال کې چې د مبیعې پیسې پر مشتري باندې قرض وي، شفیع ملکف دی چې هغه پیسې نغدې ورکړي.

❖ که چېرې پېرودونکی د شفیع له خبر ورکولو څخه وروسته په مشفوع ځمکه کې ابادي وکړي یا پکې ونې کېنوي، شفیع کولی شي چې یا ځمکه پرېږدي یا د ځمکې قیمت او د ابادۍ او ونو مصارف ټول ورکړي، او یا اخېستونکی د آبادۍ په ورانولو او ونو اېستلو اړ کړي.

- که چېرې اخیستونکی د شفیع له خبر ورکولو مخکې په مشفوعه ځمکه کې زیادت راولي (آبادي وکړي)، نو شفیع اختیار لري چې یا ځمکه پرېږدي او یا د ځمکې قیمت او د زیادت د پیسو په ورکولو ځمکه واخلي.
- که چېرې مشفوعه ځمکه د طبعي حوادثو له امله له منځه ولاړه شي، د تلف شوې برخې پیسې له اصل قیمت څخه کمېږي.
- شفعه نه تجزیه کېږي، شفیع نه شي کولی چې اخیستونکی د مشفوعه ځمکې د ځینې برخې اخیستلو او د ځینې نورې برخې پرېښودلو ته اړ کړي.

**د شفعې سقوط**

شفعه د مواثبت د طلب په پرېښودلو او یا د هغې د صحت له شرطونو څخه د کوم شرط په له منځه تللو ساقطېږي.

**فعالیت**: زده کوونکي دې لاندې عبارتونه په خپل منځ کې توضیح کړي:

خلیط، شفیع، شفعه، مدعي، مدعی علیه، دعوی.

**ارزونه**

١. شفعه په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.
٢. شفعه څه حکم لري؟
٣. د شفعې د روا والي حکمت څه دی؟
٤. شفعه په څه شي ثابتېږي؟
٥. د شفعې شرطونه کوم دي؟
٦. د شفعې له حکمونو څخه دوه حکمونه بیان کړئ.
٧. د صحیح جملو په وړاندې دا (√) نښه او د غلطو جملو په وړاندې دا (X) نښه کېږدئ:

أ- په شفعه کې ملکیت شرط دی، نو په وقف شوې ځمکه کې شفعه نه ثابتېږي. (   ).
ب- که چېرې جایداد چا ته بلاعوضه نقل شوی وي لکه: میراث، هبه (تحفه) یا وصیت شفعه په کې ثابتېږي. (   ).
ج- د شفعې حق هغه چا ته نه ثابتېږي چې په مبیعه کې شریک نه وي. (   ).

**کورنۍ دنده**

د شفعې د حکمت په اړه لنډه مقاله ولیکئ!

# له ځان څخه د فاع کول

کله کله داسې پېښېږي چې يو انسان د بل انسان پر ځان، مال او ناموس د تېري جرأت کوي، په دې صورت کې مقابل لورى خپلې دفاع ته اړ کېږي، پدې درس کې موږ د دفاع لارې څېړو او دا معلوموو چې څوک څرنګه له ځان څخه دفاع وکړي.

## لومړى: د دفاع روا والى

د شرعي دفاع مشروعيت په قرآن کريم، احاديثو او عقل ثابت دى.

الله تعالى فرمايي: (فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُواْ عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ وَاتَّقُواْ اللّهَ وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ)[1] ژباړه: چا چې پر تاسو تېرى وکړ، په همغه شان عمل ورسره وکړئ، څنګه چې يې درسره کړى، له الله تعالى څخه ووېرېږئ، زياتى ورسره ونه کړئ، تاسې پوه شئ چې الله تعالى د متقيانو ملګرى دى.

نبي کريمﷺ فرمايي: « مَنْ قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ ».[2] ترجمه: څوک چې په خپل دين مړ شو شـــهيد دى، څوک چې د ځان په دفاع کې مړ شو، شهيد دى، څوک چې په خپل مال مړ شو، شهيد دى، څوک چې په خپل ناموس مړ شو شهيد دى.

## د شرعي دفاع حالات

کله چې څوک د بل چا په مال، ځان او نفس تېرى وکړي، مقابل لوري ته په کار ده چې له خپل قدرت سره سم، څرنګه چې مناسبه وي، خپله دفاع وکړي، بل څوک هم کولاى شي چې د ده مرسته وکړي، بناءً لومړى به کمزورې لارې سنجوي، که چېرې يې په چيغو دفاع کولاى شوه، وهل ورته جواز نه لري، همدا راز که د لاس په وهلو يې دفاع کولاى شوه، په کوتک وهل ورته روا ندي، همدا شان نور چې پدې باندې خپله دفاع کوونکى پوهېږي. [3]

---

[1]- البقرة: ۱۹۴

[2]- اخرجه البيهقي في السنن الکبرى، ج: ۳. ص: ۲٦٦.

[3]- وګوره: بدائع الصنائع، ج: ۷. ص: ۹۳.

## د شرعي دفاع شرطونه

۱. تېری او تجاوز به له داسې جريمې څخه وي چې جزا به لري، بناءً د پلار، خاوند او ښوونکي تاديب تيری ندی.
۲. تېری او تجاوز به سملاسي صورت نېولی وي، معنا دا چې مؤجل او تهديد به نه وي.
۳. د تېري مخ نيوی به په مناسبه اندازه کوي تر څو د ده د گومان مطابق تېری رفع شي.
۴. د تېرې مخ نيوی پرته له زور څخه په بله لاره امکان ونه لري.

**فعاليت:** څوتنه زده کوونکي دې له ځان څخه د دفاع د شرطونو په هکله خپلو ملگرو ته معلومات ورکړي.

## د شرعي دفاع د حکم حالات

### ۱. د ځان څخه د دفاع حکم

که چېرې کوم انسان په بل باندې د تېري تکل وکړي، غواړي چې مړ او يا يې کوم غړی له کاره وغورځوي، برابره ده چې دا کار په انسان کوي او يا کوم حيوان باندې، بناءً د هغه چا له پاره چې تېری ورباندې کېږي، پکار ده چې له ځان څخه دفاع وکړي، که چېرې حمله کوونکی د مدافع له لوري مړ شو، هيڅ جنايي او مدني مسئول ندی، معنا دا چې ديت او قصاص ورباندې نشته، نبي اکرمﷺ فرمايي: (چاچې يو چا پسې توره را وايستله، بيا يې کېښوده او همدی ورباندې ووهل شو، وينه يې تاوان نه لري)

مسئلة: که چېرې حمله کوونکی حيوان، ماشوم يا ليونی وي، مدني پوښتنه به ورڅخه کېږي، نه جنايي، معنا دا چې قصاص ورباندې نشته خو ديت او د حيوان تاوان به گالي، نبي کريمﷺ فرمايي: «الْعَجْمَاءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ» د حيوان زخم تاوان نه لري.

### ۲. د مال څخه د دفاع حکم

له خپل مال څخه دفاع کول روا دي، له نبي اکرمﷺ څخه يو سړي پوښتنه وکړه، که چېرې يو سړی راشي او له ما څخه مال اخلي، څه وکړم؟ رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: مه يې ورکوه. [۱]

[۱] – وگوره: تبيين الحقائق، ج: ٦. ص: ۱۱۰. بدائع الصنائع، ج: ۷. ص: ۹۳. الفتاوی الهندية، ج: ٦. ص: ۷ الی ۵۱.

## ارزونه

أ- لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. دفاع په کوم دلیل روا شوې ده؟ د قرآن کریم یو آیت او یو حدیث شریف ولیکئ.

۲. د دفاع حالات کوم دي؟

۳. شرعي دفاع کوم شرطونه لري؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.

ب- لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. د.......................................... تادیب تېرى.........  بلل کېږي.

۲. که چېرې حمله کوونکی د مدافع له لوري مړ شو، هیڅ..................... ندی، معنا دا چې...........................ورباندې نشته.



### کورنۍ دنده

د خلکو په ما ل، نفس او پت باندې د تېري کولو د گناه په هکله یوه مقاله ولیکئ.

# وصیت

## د وصیت معنا

وصیت په لغت کې عهد او وعدې ته ویل کېږي.

**او د فقهاوو په اصطلا ح کې:** هر هغه مال چې وروسته له مرگ څخه یې سړی پر ځان باندې د بل چا له پاره لازموي، وصیت بلل کېږي.[1]

**د وصیت ډولونه:** وصیت په دوه ډوله دی:

۱. **مطلق وصیت:** دا هغه وصیت دی چې یو څوک داسې ووایي: ما فلاني ته په فلاني شي وصیت کړی دی.

۲. **مقید وصیت:** هغه چې داسې ووایي: که چېرې زه د دې ناروغۍ څخه مړ شوم، فلاني ته دا شی ورکړئ.

## د وصیت د روا والي دلیل

وصیت په قرآن کریم، احادیثو، اجماع او عقل سره ثابت شوی دی.

۱. الله تعالی فرمایي:( كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالأقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ)[2] ژباړه: پر تاسو فرض دي چې کله د ځنکدن په حالت کې یاست او مال درڅخه پاتې کېږي، پر تاسې لازمه ده چې پلار، مور او نږدې خپلوانو ته په نېکه (عدالت سره سم) وصیت وکړئ او دا په پرهېزگارانو باندې د دوی حق دی، همدا راز پدې هکله نور آیتونه هم شته.

**یادونه:** د وصیت فرضیت د میراث د ایاتونو له نزول سره منسوخ دی یواځې جواز یې پاتې دی.

**فعالیت:** زده کوونکي دې په انفرادي توگه د وصیت د یو یو شرط د حکمت په اړه خپلو ملگرو ته معلومات ورکړي.

---

[1] – وگوره: تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق، ج: ۱۸. ص: ۱۳۰.

[2] – البقرة: ۱۸۰

۲- نبـــي کـــریمﷺ فرمـــايي: «إِنَّ اللَّهَ تَصَدَّقَ عَلَيْكُمْ عِنْدَ وَفَاتِكُمْ بِثُلُثِ أَمْوَالِكُمْ زِيَادَةً لَكُمْ فِي أَعْمَالِكُمْ»[1] ژباړه: بېشکه الله تعالی تاسې ته د ځنکدن په وخت کې دا واک درکړی چـــې د خپل مال درېمه برخه چا ته د وصیت په بنیاد خیرات ورکړئ، کوم چې بیا په آخـــرت کـــې ستاسې په نېکو اعمالو کې زیاتوالی راولي.

**۳- اجماع:** علماوو کرامو رحمة الله علیهم د وصیت په روا والي اجماع کړې ده.

**۴- عقل:** د عقل غوښتنه هم همدا ده چې سړی باید ښه او نېک کارونه وکړي، د دې له پاره که چېرې کومه نېمګړتیا ترې شوې وي، هغه وروباندې جبیره شي.

## د وصیت د روا والي حکمت

په دنیا کې خیر او ښېګڼه د دې له پاره خلکو سره کول چې د آخرت ثواب ورباندې ترلاسه کړي، ځکه خو شریعت دنیا د کښت او آخرت د درمند اخیستلو ځای ښودلی دی.

## د وصیت حکم

وصیت مستحب او غوره عمل دی او اندازه یې د ټول مال درېمه برخه ده او هغه وخت باید ورکړل شي چې د وصیت کوونکي ټول پورونه ورکړل شي.

## چا ته به وصیت کېږي

د اجنبي شخص (یعنې چې وارث نه وي) له پاره وصیت کول صحیح دي، برابره ده چې مسلمان وي او که کافر، همدا راز د وارثانو اجازه هم شرط نده.

## د وصیت رکن

د وصیت رکن یوازې د وصیت کوونکي له لوري ایجاب دی چې همدا د امام زفر رحمه الله نظر هم دی.[2]

## د وصیت شرطونه

## د وصیت کوونکي شرطونه

۱. وصیت کوونکی به د تبرع او ورکړې اهل وي، معنا دا چې عاقل او بالغ په خپل مال کې د تصرف اجازه ولري.

۲. وصیت کوونکی به وصیت پخپله خوښه پرته له کوم زور او زیاتي څخه کوي. [3]

[1]- وګوره: مسند الصحابة فی کتب الستة.

[2]- وګوره: الدرالمختار، ج: ۷. ص: ۲۲۹.

[3]- وګوره: العنایة شرح الهدایة، ج: ۱۶. ص: ۵۵.

### د وصیت د نفاذ شرط

د وصیت د نفاذ او پلي کېدو له پاره دا شرط دی چې باید وصیت کوونکی دومره قرضدار نه وي چې د ده ټول مال په کې له منځه ولاړ او ختم شي.

**د وصیت مبطلات:** وصیت په لاندې شیانو باندې له منځه ځي:

۱. کله چې د وصیت کوونکي اهلیت له منځه ولاړ شي، وصیت باطلېږي، یعنې چې دایمي لیونی شي.

۲. کله چې وصیت کوونکی له خپل وصیت څخه وګرځي، وصیت له منځه ځي.

۳. کله چې وصیت کوونکی خپل وصیت له کوم شرط سره وتړي او بیا هغه ټاکلی شرط رامنځ ته نه شي، وصیت له منځه ځي.[۱]

### ارزونه

أ- لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. وصیت په لغت او اصطلاح کې څه ته وایي؟

۲. وصیت په څو ډوله دی؟ د هر یو تعریف بیان کړئ.

۳. د وصیت حکم او اندازه یې بیان کړئ.

۴. د وصیت کوونکي شرطونه ووایاست.

۵. د وصیت باطلوونکي څو دي؟ په لنډ ډول یې ووایاست.

ب-لاندې جملې بشپړې کړئ:

۱. د وصیت د نفاذ او پلي کېدو له پاره دا شرط ده چې باید وصیت کوونکی..........

۲. د اجنبي شخص له پاره وصیت کول............... دی، برابره ده چې............ وي او یا................ وي.

### کورنۍ دنده

د وصیت د ګټو او د هغه د لیکنې په هکله یوه مقاله ولیکئ.

---

۱- وګوره: الدر المختار، ج: ۵. ص: ۴۶۹ الی ۴۷۱.